یا این :

| | |
|---|---|
| دا خـه مـخ د ی منـو ر | چه هم شمس دی هم قمر |
| دا خه زلفی دی مشکینی | چه‌هم مشك دی هم عنبر |
| داخه سترگی دی قاتلی | چه‌هم سیف‌دی هم‌خنجر |

( رحمان بابا )

دیگر :

| | |
|---|---|
| دا خه مـخ دی ښا ئسته | چه هم لمر دی هم ډیوه |
| داخه شونډی دی شیرینی | چه هم می دی هم پیاله |

( گـل‌محمد )

٦ : ـ تشبیه متعدد باواحد . مثال :

نه دی پوزه ، سترگی ، غوزدکم شناسو په معنی کښی یودیوال سوری سوری دی

( رحمان بابا )

پوزه ، سترگی ، غوز متعدد ودیوال واحد است .

۷ : ـ تشبیه غیر محسوس بامحسوس .

مثلاً :

دریا عمل می طوق شو را په غاړه لکه خپور شی په جگړه د ستار دچا

( شمس الدین )

عمل غیر محسوس ودستار محسوس است .

۸ : ـ تشبیه محسوس باغیر محسوس .

یار پرجستجوی زما هسی خندا که لکه خاندی پر تدبیر باندی تقدیر

( شمس الدین )

یار محسوس وتقدیر غیر محسوس است .

۹ : ـ تشبیه محسوس بامحسوس .

مثال :

زړه می بـې دیار له مخه مدا ر نه کا عندلیب غوندی بې گلو قرار نه کا

(شمس‌الدین)

زړه وعندلیب هردو محسوس اند .

۱۰ : ـ تشبیه معقول بامحسوس .

مثال :

د گلرخو په هوس شپې رونو مه      آموخته لکه شبنم په دا شبخون یم
( شمس الدین )

شبنم محسوس وشاعر معقول است .

## ادات تشبیه :

ادات تشبیه چند قسم اند ، بعضی حروف برخی اسما ودیگر افعال اند .

## حروف :

مانندیکه درعربی ( کاف ) و ( کان ) ودر فارسی ( چو ، چون، همچو ) است در پښتو حروف ذیل وجود دارد .

لکه ـ غوندی ـ دود ـ هسی ـ ورته

مثال حرف لکه :

گوندی بخت می ددلبر د زلفو ز منځ کا      که فلك تو کړي تو کړي لکه شمشاد کړم
( عبدالقادر خان )

مثال حرف غوندی .

که زما په مرگ دی زړه دی تېغ راواخله      دقصاب غوندی می بند په بند جلا کړه
( خوشحال )

دیگر :

که مو عمر د چمن تر گلو کم دی      دلاله غوندی سور مخ دزړه په داغ یو
( عبدالقادر )

مثال حرف دود :

د غنچې په دود می ځوړند سر نیولی      لاس می واخست ددنیاله سودوزیان بیا
( عبدالعظیم )

مثال حرف هسی :

داغزل چه په پښتو ژبه بیان عبدالقادر کړه      دروغجن یم که بې خانه وائی بل یو پښتون هسی
( عبدالقادر )

حرف ورته :ـ البته این حرف درادبیات خواهد بود ، مگر بنظر من نخورده لذا برای مثال یك محاوره را انتخاب میکنم .

« ستاقلم زما قلم ته ورته دی »

## اسماء :

طوریکه درعربی ( نحو، شبه ، مشابه ، مماثل ) ودر فارسی( مانند،همتا،سان)وجود دارد ، درپښتو ( شان ـ څېر ـ سیال ـ وغیره ) است .

مثال حرف شان :

دستې په شان به سوځم سر تر پایه — چه تازه می کړو خپل ځان وته ‌یر ان بیا

(عبدالعظیم)

مثال حرف څېر :

وېراندنی هم ځوله ـ ستا په‌څېر سړی وه — ته هم یا خه دهغو به څېر همت کړه

(رحمان بابا)

مثال حرف سیال :

نمر له تا نه منور ره شو دا له نمره — څوك به میاشت کاستاله مخه سره سیاله

(عبدالقادر)

## افعال :

به عوض (تماثل ، تشابه ، یحکی ، یضاهی) عربی و( گویی ، پنداری) پارسی درپښتو افعال ذیل‌وجود دارد :

(ته‌وا ـ ته‌به‌وایې ـ ته‌چه‌وایی ـ تابه ویل وغیره)

مثال ته‌وا :

را مو نه وړه دېر دوله کوره گټه — یو دیل له جیبې کاږو ته وا غله یو

(مخلص)

مثال ته به وایې :

ته به وایې پر گلانو شبنم پر پووت — چه‌له قهره ئې خولې شی رخسارونه

(عبدالقادر)

مثال‌ته چه‌وایې :

زلمی‌داسی توری وهی ته‌چه‌وایې اکبرخان راژوندی سوی‌دی ـ

مثال‌تا به ویل :

زلمی‌به جنگ که‌داسی مړانه ښکاره کړه تابه‌ویل زمری دی ـ

## استعاره

استعاره درلغت بعاریه خواستن چیزی‌است از کسی‌ودر اصطلاح استعمال‌لفظی درغیر معنی حقیقی است .

مثال :

زړه‌یې له غیرته په کوګل دننه دو دشی
زمنځ چه‌دی بې‌فهمه وهی ګوتی په کاکل
(حمید)

دل شانه دود شدن و انگشت به نافهمی در کاکل زدن تماماً استعاره شده است اقسام استعاره ومجازات دامنهٔ خیلی وسیعی دارد، مگر ما نسبت به ضیق صحایف سالنامه ازان صرف نظر نمودیم.

## ایهام

معنی ایهام بگمان انداختن است‌واین‌صنعت چنان‌باشد که گوینده ونویسنده درنثر یانظم لفظی استعمال کرده که‌دارای دومعنی‌باشد ، یکی‌نزدیك ودیگری‌دور، ابتداذهن شنونده بطرف معنی نزدیك‌رود بعدمنتقل‌شود که مراد معنی‌دور است ـ

مثال :

سر په لاس در پسی‌دورمم نه قبلېږی نصیب مه شه دچا دا سر ګر دانې
(عبدالقادر)

سر گردانی دومعنی دارد ـ

مثال‌دیگر :ـ

جدائی په‌غم شریك کړم دغمجنو دهر چا په غاړه ژاړم لکه نی
(پیر محمد)

مقصدلفظ غاړه است که‌خواننده دراول مطلب از غاړه (گردن) گرفته مگر مقصد شاعر معنی دوم لفظ (طرز ، ادا ، روش) است .

## متضاد

متضاد استعمال کردن الفاظ و کلمات ضدیکدیگر است ، چه در نظم وچه در نثر ـ مثل‌نوروظلمت ، سیاه‌وسفید ، تروخشك ، گرم وسرد وغیره :

مثال :

چه ئې تللم په خندا خندا دیدن ته ۔۔۔ اوس یې درومم په ژړا ژړا مزارته

( عبدالقادر )

خنده و گریه باهم متضاداند .

مثال دیگر :

آخر به ومری په دېر غربت کښې ۔۔۔ بې کس زما زړه تنها زما زړه

خراب له عشقه آباد له حسنه ۔۔۔ مجنون زما زړه لیلی زما زړه

ظاهر اقرار کا باطن منکر دی ۔۔۔ بد بخت زما زړه حاشا زما زړه

په اوښو غرق شوله صبره وچ دی ۔۔۔ دریا زما زړه صحرا زما زړه

(شمس الدین)

## مطابقهٔ متضاد

که دریك بیت امر ونهی یا اثبات ونفی باهم بیایند ـ

مثال :

نمر وته نه گورم ، گورم زه وخپل نگار ته ۔۔۔ گل ته نظر نه کړم ، نظر کړم هغه رخسار ته

باغ وته می بولی ، نه می بولی دیار کوی ته ۔۔۔ کوی ته به یې درومم ، نه به درومم و گلزار ته

نور به یاری نه کړم ، کړم اخته په غم یارانو ۔۔۔ هیڅ یې را پرې نهښود ، غم یې پری ښود وماخوارته

(عبدالقادر)

مثال دیگر :

د بد خواه و منه ، د ښځو مه منه ۔۔۔ له مرگه مه تښته ، تښته له قرضه

(خوشحال)

مثال دیگر :

را یشه چه راشی تللی بخت په سلامونه ۔۔۔ مه درومه چه نه درومی له ماخخه آهونه

و گوره چه و گورم په خیر د استاو مخ ته ۔۔۔ مه گوره چه نه گورم بې تازه نور مخونه

وخانده چه وخاندی غیچې له خوشالیه ۔۔۔ مه وهه چه نه وهی بلبلی چغارونه

## مراعات النظیر

مراعات النظیر این است که اقلاً دوچیز باهم مناسب در کلام آورده شود ـ
مثلاً یك لنډی است :

سینه می دیگ زړه گی می غوښی | اوښکی او بهدی پیلتون اور پسی کوینه
---|---

دیگ و گوشت و آب و آتش در حالت پخت باهم خیلی تناسب دارند ـ

## براعت استهلال

معنی لغوی براعت استهلال تفوق و برتری ابتدائی باشد ، در اصطلاح مناسب بودن ابتدای کتاب با موضوع آن ـ مثلاً کتابی در نحو تألیف می شود در دیباچهٔ آن ذکر رفع ، نصب ، جر ، فاعل ، مبتدا وغیره بیاید ، اگر مرد فاضلی دیباچهٔ آن بخواند بدون اینکه دیگر ورق بزند می فهمد که کتاب درعلم نحو است یا دیگر علوم ـ . . . .

مثال ـ حمید شاعر آتش زبان ما کتاب (نیرنگ عشق) خویش را به ابیات ذیل شروع کرده ، که خواننده می داند که این کتاب اشعار سوزندهٔ اوست :

شعر نه دی داخوناب دزخمی زړه دی | یادستی وتلی دم له خولې دمړه دی
یا نغمه دنیم بسمل مرغه د خولې ده | یامجنون ته معما ښکلې لیلی ده
یا د وینو ا با سیند و هلی موج دی | یا له ښاره دحیرت و تلی فوج دی

( حمید )

## حسن الطلب

طوری خواهش است که مخاطب آزرده خاطر نگشته یعنی خواهش زیبنده و خوب .
مثال لنډۍ :

په د یو ال هسکه شه خو له را که | یو همز و لتیا ده بل منت درته کومه
که خوله دی را کړه خه به و شی ؟ | زړه به می ښه شی خوله به بیادرسره وینه

مثال دیگر

باران اوریږی ، خښوا کی شا شی | نسیم را والووت ، سنبل پرې ناشی
اسباب د عیش و اړه موجود دی | ساقی ته گورو چه دی راپاشی

( عبدالقادر )

چه قدر خواهش زیبنده ـ که بر ساقی امر نکرده بلکه انتظار می کشد .

## حسن تعلیل

این صنعت ایست که گوینده برای کدام وصف یك علت بیان کرده که در حقیقت علت نباشد مگر ازحیث لطافت ومناسبت علت خوبی شمرده شود .

مثال :

چه نظرئې د گلرخ ساقی په مخ شو ‌ ‌ ‌ ‌ دنرگس له لاسه جام پر یووت نسکور شو

( حمید )

مثال دیگر ،

ورغړوه ستر گی زلفی لیری له رخسار که ‌ ‌ ‌ ‌ ستالیدو ته رېږدی لمر په پانوکښې د گلو

( زاخیلی )

مثال دیگر :

ځکه شوه تر زنگانه په وینو ډوبه ‌ ‌ ‌ ‌ چه ئې زر که سمېده له پتانه

( حمید )

## حسن مطلع

حسن مطلع آنست که الفاظ بیت اول مأنوس ونزدیك به ذهن بوده، بگوش خوش آید . خواننده یاشنونده رامجبور سازد تا آئندهٔ آن را خوانده و یابشنود. شنیدن آن باعث شفتگی وانبساط خاطر گردد :

مثال :

په مجالس کی بېرون له همه ‌ ‌ ‌ ‌ دا آواز و خوت د خم له فمه :

« چه زه هم ستاسی میخور زلمی وم ‌ ‌ ‌ ‌ ځما له حاله مې شئ بې غمه »

( عبدالقادر )

مثال دیگر : ـ

خه خورا شه نن د عشق د مړ و په خلو ‌ ‌ ‌ ‌ ورته وایه اې د هجر تیغ و ژلو :

« چه دعشق د ځنکندن پیالې مونوش کړې ‌ ‌ ‌ ‌ شهادت مو مبارك شه خدای بتلو

( علی خان )

## حسن مقطع

مقصوداز مقطع قطع کردن کلام یعنی ختم کردن قصیده وغیره به کلامی مطبوع ودلکش است بدون کدام شرط مثلا عبدالقادرخان ختك دریك موقع اشعار خودرا به بیت ذیل قطع کرده .

ستا په حسن سوګند خورم په ښیله مینه
تر ځان عبدالقادر مین په تا یم

## اغراق

اغراق یکی ازصنعتهای خیلی معمول کلام است که مبالغه هم گوید ـ مگر اغراق شرایطی دارد که با آن شرایط ازمحسنات سخن شمرده می شود .
مثلاً شرط اول فصاحت وبلاغت کلام است دوم اینکه اغراق خوبی وبدی‌چیز ویا تصدیق وتکذیب آن‌راقوت وشدت میدهند ـ نه اینکه هیچ نباشد و گفته‌شود که هست. چنانکه بخیل‌را بکرم ستایند ـ پس این اغراق نیست دروغ است .
مثال :ـ

زړه می داسی اند ښښنو دهجران ډك کی
ځای د وصل پکښې نشی یو خاش خاش
( شمس الدین )

## اعداد

که صفات متعدد ممدوح یکی بعد دیگری آورده شود طوریکه خوشحال خان گفته :

ناز ، نخرې ، مهر ، خندا ، فتنې ، جنګونه
د ښیل یارسره هم تازده دارنګونه

مثال دیگر :

ګل ، شبنم ، صبا ، بلبلی ثنا وائی هر سحر ستا
( عبدالقادر )

## تنسیق الصفات

ذکر صفات است بطور توالی :
مثال :

په لاری تلمه ، په څه راغله ، یوه دلبره ، پری رخساره
دنمر په شانه ، لاترې روښانه ، په ښکلی‌مخ وه ، هغه نګاره
غاړه بلنده ، خاطر پسنده ، عنبر ین بو یه ، یا سمین مو یه
په شونډو لعله ، په زړه الماسه ، په سپینو غاښو در شهواره

ز نه ئې سيبه ، بيله آسيبه ، په ملاتر خپلو ، ويښتو نر يه
شيرين كلامه ، نازك اندامه، ول ول ئې زلفی ، لاله عذاره
بې ميو مسته ، خوله نيست وهسته ، د كه له نازه ، خالی له نيازه
سر تر قدمه ، ثابته روغه ، له هره عيبه پاكه و يزار ه
(عبدالقادر)

## التفات

این چنین است که گوینده در کلام ، سیاق عبارت را تغیر داده از غیبت بخطاب و تکلم وغیره التفات شود ـ

مثالها :ـ

### التفات ازغیبته به تکلم :

ظاهر بين ئې په ظاهر صورت غلط شو — په با طن په خاو ره پټه خزانه يم
(عبدالقادر)

درمصرع اول غیبوبت ودرثانی تکلم است .

### التفات ازخطاب به تکلم :

بادې بوی عبدالقادره سحر راووړ — شگفته لکه غنچه په دغه باد شو م
(عبدالقادر)

### التفات ازغیبته به خطاب :

په ښکنځل يې سرفراز عبدالقادر کړ — دژوندون له باغه خوره دمنو بر بر
(عبدالقادر)

مثال دیگر :

چه د لبر ه دلربا د ه هغه ته يې — چه خودرايه خودستاده هغه ته يې
چه نازك ئې دی اندام د گل تر پانی — په قدښه ترعرعر لا ده هغه ته يې
(خوشحال)

### التفات از تکلم به غیبته :

چه دی ښه له خويه بويه خبر دار شو م — دخوشحال سره ياری کړې په دروغ
(خوشحال)

## حشو

حشو درنظم ونثر جملهٔمعترضه ایست ، که‌درپښتو آنرا (تکیه کلام)هم گویند ـ یا کلامیست زاید که‌دربین جمله واقع شود ـ

مثال :

اوس‌می څه‌زده «باقی‌دا» چه‌له‌څه‌راغی      ځی به چیر ته سور یا پلی ځما روح

(علی‌خان)

(باقی‌دا) حشو است ـ

## تجاهل العارف

این صنعتیست که‌گوینده درکلام خویش خودرا نادان قلم‌داد کند. گرچه‌واقعه به‌او معلوم باشد مگر بغرض کدام نکته یانزاکت اظهار نادانی نماید ـ

مثال :

داد دلبر مخ دی چه له‌شاله نیم لیده‌شی      یازیږوتی نمر دی‌چه‌ښکاریږی نیم له غره

(علی‌خان)

مثال دیگر:

کوم یوله دی دووښه دی دیار مخ که شگوفه

کوم یوله دی دووښه دی توری زلفی که نافه

(شمس‌الدین)

مثال دیگر:

په صحت‌یی نارضا په دردبی صبره      ددی‌هسی‌رنگ زحمت‌دارو به‌څه‌وی؟

(عبدالقادر)

## قلب مطلب

قلب نمودن عبارت را بطوری که‌مطبوع وخوش آینده باشد قلب مطلب گویند ـ

مثال :

ما په‌سل کرته یادکړی ته رانغلی      زه په‌سل کرته درشم که‌تایادکړم

( گل محمدهلمندی)

## مدح شبیه به‌ذم

طوری مدح گفته شود که‌شباهت به‌ذم داشته باشد ـ

مثال :

عاشقانو بې فریاد بې‌شانه نکړو معشوقې که په‌یو شان وای نا انصافی
(علی خان)

مثال دیگر که شمس الدین درصفت اسپ خود گوید :

ترولاړو اوبو تېزدی په‌رفتار کښ د گانټې مزل په‌میاشت وهی تنها

## ارسال المثل

که ضرب المثل ویاجمله مشهور درنظم آورده شود ـ

مثال :

هغه هم پکښ پرېوزی دا‌متل دی «چه وبلوته کوهی کینی وبال کا»
(حمید)

مثال دیگر :

«دگورشپه‌چېری‌دچانه‌په‌کور کېږی» غم دچا په خوشحالی کله بدلېږی
(عظیم)

## ارسال المثلین

که‌دوضرب المثل دریك بیت آورده شود ـ

مثال :

وائی‌چه «له‌خانه په‌اولادوی پېرزوینه» خدای به‌کا «روانی په‌اصلی ولو اوبه»
(خوشحال)

## سوال وجواب

معنی این صنعت ظاهر است ـ

مثال :

ماوې‌یادی پرمخ زلفی راخورې کړې دوی‌ل‌ستا په‌خوله‌می‌یاخاوری ایرې کړی
ماوې وایه څه ارمان لری په‌زړه کښ ده ویل‌منگلی که می‌ستا په‌وینو سرې کړی
(حنان)

مثال دیگر :

ماوې تاته به قریب په کوم سبب شم دوې‌ترك کړه ماسوی ماوې په ستر گو

ماوې ستا دمخ و گل ته مې لار نشته     ده وې کړه پښه ژړا ماوې په ستر گو
(شمس الدين)

## رجوع

يك مطلب را گفته پس ازان به ابطال آن رجوع شود -

مثال :

که ښه وايم وچاته هم ئې بد نيسي په زړه کښ
يا بخت دی د مغلو يا ځما څه عقل کم دی
نه بخت دی دمغولو نه ځما څه عقل کم دی
دا کل واړه پېری ده چه مې کار برهم درهم دی

## زشت و زيبا

صنعتيست که درمصرع اول دشنام ودرمصرع ثانی پس مدح شود -

مثال :-

| زشت | زيبا |
| --- | --- |
| يو وارماو اخيستای پښې د خپل نگار | چه مې رنګ کړای په نکريځو گل انار |
| تـه ويده وې ما درسته شپه کولې | باری ستا پـه باب دعـاهز ار هزار |
| که ئې يو ځله ، پر سر وربا ندی کښېښې | رنځ دهجر بـه شی د فع د بيما ر |
| بندئې خلاص که پورتې ونيسه پخپله | مخ يو تی پـه نقاب نه ښا ئی د يا ر |
| که هر څو پر مو ته زور کړم درست په نه ځی | په رقيب کښ ځما غشی د آ زا ر |
| په مدارمدار بې کازم چه خوږ نشې | د با نـو پـه ستنی ستا د پوندی خار |
| دم په دم ئې هم وهمه هم ئې کازم | ستا له غمه ترخوله دود ناری کو کار |

څو پر سپور ئې باندی ښوره شمس الدينه
د عشق اوښ پـه لا ری کله ځی هموا ر
( شمس الدين )

## هغه ذوات چه د کابل کالنۍ سره ئې قلمي مرسته کړېده

ښاغلی قيام الدين «خادم» د اتحاد مشرقي د جريدې مدير ، د (دريمه برخه : مياروښان) د مقالې ليکونکی (۲۰۳ مخ)

ښاغلی ، عثمان «صدقي» د راډيو د نشرياتو مدير ، د (فهرست شهرهای افغانستان) د مقالې ليکونکی (۲۱۷ مخ)

ښاغلی ، امين الله «زمريالی» د پښتو ټولنې معاون ، د (پښتون) د مقالې ليکونکی (۲۳۸ مخ)

## هغه ذوات چه د کابل کالني سره ئې قلمي مرسته کړېده

ښاغلی ، صدیق الله « رشتین »
د قواعدو مدیر ، د ( پښتو ټولنې )
د مقالې لیکونکی
( ۲۵۱ مخ )

ښاغلی ، یار محمد « نظامی »
د صحافت معاون ، د ( داخلی
مهم وقایع ) د مقالې لیکونکی
( ۲۸۰ مخ )

ښاغلی ، سید قاسم « رشتیا »
د نشریاتو عمومی مدیر ،
د ( دنیاواقعات ) دمقالې لیکونکی
( ۲۹۶ مخ )

# د ریمه برخه: میاروشان

( ۲ )

لیکونکی: قیام الدین «خادم»
د مشرقي اتحاد مدیر

میاروښان د لودیانو د سلطنت په اواخرو کښی د پنجاب په جلندر ښار کښی وزیږید. د ده دزیږیدونه یو کال پس ته بابر په پښتنو مسلط شو؛ او هندیې مسخر کړد مغولو په تاریخ کښی راغلی دی چه په ۹۳۲ هجری کال بابر په ابراهیم خان لودی بری وموند. (۱) په دې حساب سره گویا میا روښان په ۹۳۱ هجری او (۱۵۱۲) میلادی کال لځو.کړی دی؛ چه تر اوسه ئې ۴۲۸ کاله کیږي

د میاروښان د پلار نوم شیخ عبدالله ؤ، چه په اوه پښته کښی شیخ سراج الدین انصاری ته رسیږی. د مور نوم ئې (بنین) دی. بنین د محمد امین لوروه. د عبدالله د پلار او نیکه نوم ندی معلوم. هو، دا خبره معلومه ده چه د عبدالله نیکه او د بنین پلار (محمدامین) سره ورونه وو. او په جالندر کښی اوسیدل وائې چه دوی د پښتنو (لودیانو) په نهضت کښی هند ته راغلی وو. د عبدالله پلار د خیل تره (محمد امین) ځخه، دده لور (بنین) خپل ځوی (عبدالله) د پاره وغوښته. نو بنین ئې عبدالله ته ورکړه، په دې وخت کښی عبدالله (د میاروښان پلار) په کانی کوړم یا کانړی گرم، (وزیرستان) کښی ؤ؛ دی خبر شو او جالندر ته راغی. دلته میاروښان تولد شو، او هر کله چه په پښتنو د مغولو تسلط او تشدد زیاد شو، بنین د خپل ځوی (روښان) سره چه د غیږی طفل ؤ؛ کانی کوړم ته راغله. (۲) وایی چه عبد الله عالم صالح او د خپل وخت مدرس ؤ (۳) هر کله چه دده فرزند (روښان) پیدا شو؛ نو د نبوی هجرت د نهه سو و کالو

(۱) دبستان مذاهب د میاروښان د حالنامې په حواله.
(۲) دبستان مذاهب د میاروښان د حالنامې په حواله.
(۳) مخزن داخون درویزه.

ښخه څه کلونه تېر شوی وو؛ نو په دغه لحاظ ئې وربانديِ (بازيد- يا - بايزيد) نوم کېښېښود (۱) مياروښان علاوه د بازيد او بايزيد د نومونو څخه په پير روښان ، پير روشن او شيخ سراج الدين روښان په نومو نوهم ياد شويدی . ځنا لفينو په پير تاريك سره هم ياد کړيدی . په بازيد انصاری او بايزيد انصاری او بايزيد مسکين سره هم ذکر شوی دی . مگر په ټولو نومو نو کښ ئی مياروښان زيات شهرت لری . نو ځکه مونږ دی په همدغه مشهور نوم سره ستايو .

مياروښان په قام څوك دی ؟ اخون درويزه په تذکره کښ وائی چه د وزيرستان په کانيی کوړم ځای کښ د پښتنو ځو قبيلی سکونت لری . چه اورمړ او انصاری هم له دغه قبيلو ښخه گڼل کېږی . ميا روښان دانصاری قبيلی ښخه دی . وايی چه انصاريان دعلم او صلاح خاوندان دی . په مخزن کښ وائی « بدان ای فرزند که در موضع کانيی کوړم در ميان افغانان ورمړ عبدالله نام مردی بود باعلم وصلاح وازاولاد علماء وصلحا بوده ؛ تابقضای قدير ازوفرزندی بزاد بازيد نام » دمخزن په بل ځای کښ ليکی : « دبازيد پلار نيکه دواړه عالمان وو دورمړ هم رښتينی وو پدين کښ » داهم دمختلفو تذکرو څخه ثابته ده چه ميارو ښان په خپل مېهر کښ « بازيد انصاری » ليکلی ؤ .

دولت په خپل ديوان کښ يوځای وائی :

هر طالب که عمل کا مقصود به مومی چه مريد دور مړ بايزيد مسکين شه

د دولت دديوان په قلمی نسخه کښ چه ډېره پخوا ليکلی شويده ؛ په دې بيت باندې کوم نامعلوم سړی داحاشيه ليکلې ده « برای رفع تهمت خودها را انصاری مېگفتند وگر نه بتحقيق افغان ورمړاند . چنانچه ازافغانهای وزيری شنيده شده »

ددې رواياتو غلبه دېته ده چه روښان په قام ورمړ او پښتون دی . دانصاری لفظ ددې غالبه رواياتو سره داسی تطبيقېدی شی چه انصاری په پښتنو ( اورمړو ) کښ يوه قبيله دی لکه چه مخکښ ورته اشارت وشو . يا داچه ده دا لفظ په ځان اوخاندان باندې دکوم مصلحت د پاره اطلاق کړی دی ، لکه چه د دولت دديوان ښخه معلومېږی .

د روښان دوږ کينې په باب کښ وايی چه دده مور دده پلار ته نه وه گرانه ؛ نو پرې ئې ښوده دی دميرې اوناسکه وروڼولاس ته پاتې شو ؛ (۲)

وائی چه دروښان دپلار په شاگردانو کښ ملا پائنده نامی کمال ته ورسېد . د روښان پلار د درس وظيفه ده ته پرېښوده ؛ اوخپل ځوی روښان ئی هم ده ته وسپارلو . څه موده ملا پائنده

(۱) تذکرة الا برار والا شرار

(۲) دبستان مذاهب دحالنامې په حواله .

زیار و کښښ او روښان ئې دعلومو معتقد لې درجې ته ورساوه . وایې چه روښان تېزذکاوت درلود ؛ اوپه ووړ کوتوالی کښې به ئې په اعلی مبادیؤ کښې خبرې کولې . (۱)

دروښان دکوچنیوالی دعاداتو څخه داناقل کوی چه کوم وخت به‌دی دخپل فصل د ساتلو دپاره تلو ، نوچه خپل فصل به‌ئې ساته ؛ نودشاوخوا پټیوڅخه به‌ئې هم مرغی اومال شړلو . او دخپل پټی اوفصل غوندې به ئې ساتل . (۲)

میاروښان ووړ کیؤ چه دمسلمانی په پنځوبناؤ کښې داخل شو ؛ اوپه مواظبت سره به ئې کلمه ویله ؛ نمونځونه به‌ئې کول ؛ روژې به‌ئې نیولې ؛ اما زکوة وربانده نه‌ؤ واجب شوی ؛ دحج میل ئې درلود ، خولا کمکیؤ . وائې چه‌په دغه کمکینې کښې په‌ریاضت ولګید ؛ او د حقیقت سره آشنا شو . (۳)

دبستان مذاهب داخبره چه « روښان نالوستیؤ ؛ لیکن دقرآن اوحدیثو په معانیو پوهید و اوتطبیقات به‌ئې پکښې کول . » صحیح نه معلومیږی . ځکه ، دده دتعلیم په‌باب‌نورو ډیر وتذکرو لیکلی دی . لکه چه مخکښې مو وویل چه پلارئې خپل‌رسیدلی شاګرد ملا پائنده ته د تحصیل دپاره وسپارلو ؛ اوله‌هغه څخه‌ئې ترډیره حده‌زده کړه وکړه . همدارنګه په‌مخزن کښې‌هم لیکلی دی چه : « پدرش بازید را درتحصیل علم ګماشته ؛ تابقدر وسع حاصل آورده ؛ ودرطاعت وعبادت جدوجهدی نموده ؛ وازمنهیات شریعت محترز ومجتنب حتی‌الامکان میګشته . » دمخزن په پښتو برخه کښې داسې لیکی : « دبازید پلارنیکه دواړه عالمان‌وو دورمړ . هم رښتینی‌وو په‌دین کښې؛ ولې بازید لکه ملاشه . دده فهم په سوداشه . »

وایې چه روښان پیر لټاوه نودده په خپلوانو کښې یوسړی وچه خواجه اسماعیل ئې باله ؛ اودریاضت خاوندؤ . چه ډیر مریدان او معقدان ئې لرل ، اوخلقو ورځنې منفعت هم لیدلې ؤ . روښان وغوښتل چه مریدئې شی . مګرپلار ئې‌منع کړ . ویل‌ئې دامناسب نده چه‌په خپلوانو کښې دیوتیټ سړی مرید شې ؛ نوئې دشیخ بهاوالدین ذکریا ځامنو ته بوت . مګر روښان وویل : « شیخی په‌ارث نده » اودضمیر په‌اواز پخپله په‌ریاضت مشغول‌شو . څوچه‌دیوفکر اومسلك خاوند شو؛ خلق پرراغونډ شول . اوپه تبلیغ ئې شروع وکړه . (٤) لیکن دده دسرکردګی اوتبلیغ و ار پس له سفرونوڅخه راځی ، چه بیان ئې دادی .

هرکله‌چه‌روښان‌میرانې ته ورسید ؛ دسوداګرانو سره دتجارت په عزم سمرقند ته لاړ .

---

(۱) تذکره داخون درویزه اودبستان مذاهب .

(۲) دبستان مذاهب د حالنامې په حواله .

(۳) دبستان مذاهب .

(٤) دبستان مذاهب .

له هغه ځایه شخه ئې دسوداګرۍ اسونه راوستل . اوهندته ئې بوتلل . وائي چه جالندر ته ورسېد ؛ دپښتنودلودي کورنۍ شخه ئې یوه ښځه په نکاح واخسته : چه نوم ئې ( شمسی ) و. دلته دفکراوعلم خاوندانوسره ملاقي شو . چه لههغوشخه ملا سلیمان ډولو تذکرو یاد کړیدی .

(۱) وائي چه ددغه کسانوسره ئې په ډېروموضوعاتوبحث اومباحثې وکړې ؛ اوتردې وروسته دروښان په حیات کښې لوی تغیر پیداشو . کوم وخت چه دروښان مشرځوی شیخ عمر وزیږېد؛ نوخپل وطن ته راغی . دلتهئې دخپل پلاراوتره سره په شه مسائلو کښې اختلاف پیدا شو . وایي چه دپلارله لاسه زخمي هم شو . کوم وختچه جوړشو ؛ دکابل پهلارننګرهارتهراغی . دلته دملك سلطان مهمند کره په مهمندوکښې د مپلمستیاپه ډول پاتې شو . شه موده وروسته پرشور ( پېښور ) ته لاړ . هلته دخلیلو په غوریخیلوقبیله کښې دېره شو ؛ اودېیرې اوازه ئې خوره شوه . (۲) تردې وروسته دی نورډول کارونه پریږدی ، دپیرې مریدۍ پهلاره دخپل مسلك تبلیغ اواشاعت ته ملاتړی .

ترهغه په خلیلو کښې وترشوچه دخلیلوتپه اکثره دده مریدان شول . شه موده وروسته داشنغر مهمندزی ورغلل اودی ئې اشنغرته راووست ؛ او کله دېر کښې ئې ځای ورکړ .

له دی ځایه ده هرې خواته کاغذونه خواره کړه ؛ اوارې اوژدې خلق ئې خپل مسلك ته راوبلل . دادعوت سید علي ترمیذی ( پیر بابا ) اودده شاګرداخون درویزه ته هم وشو . اودوی دروښان ځې ته راپاڅېدل . پس له دی روښان دخپلومخالفانوسره ډېرې معارضې او مناظرې وکړې . دروښان له یوی خوامو افقان اودبلې خوا مخالفان ډېرشول . خبره غټه شوه . خوچه دهغه وخت حکومت ، په معامله کښې مداخله وکړه . او روښان د هغه وخت د مقتدر حکومت په مخالفت تورې ته لاس کړ اومریدان ئې ورپسې ټینګ ودرېدل . او کلونه کلونه پښتانه د مغولو په مقابل کښې وجنګېدل . او زرګونه او کروړونه سرونه له تنې پرېکړی شول ښه نو ، ددې تاریخی غوټې سپړل شنګه دی ؟ په وروسته ځونو کښې د دې غوټې د سپړلو کوښښ کېږی .

د دبستان مذاهب مؤلف وایی : شاه بیګ خان ارغون چه په خان دوران مخاطب و . ده میان بایزیدلیدلیو . ده ویل : کوم وخت چهمیان بایزید لاتوره نه وه ایستلې ، نودی د همایون بادشاه د ځوی مرزا محمد حکیم مجلس ته حاضر کړی شو ، او علماء ئې د مناظرې شخه عاجز شول . نو نا علاجه یې پرېښود .

---

(۱) وګوری تذکرة الابرار والاشرار اومخزن اودبستان

(۲) وګوری تذکرة الابرار والاشرار . تاریخ مرصع او مخزن .

وایی چه روښان په حجت او استدلال کښې دومره قوی و ، چه هیچانه شوېږ کولای .
اخون درویزه هم په خپلو عبارا تو کښې داسې ټکي د ده په حق کښې ذکر کړي دي چه د ده فراست او عقل ترې معلومېږي لکه داچه « بازید ډېر په عقل پور و » د دنیا عقل یې ډېر و ، هوښیاري او زیرکي یې ډېره زده وه » یا لکه دا چه « سکه بازید یو حکمتی و » یا لکه داچه « دا بازید په عقل پور و »

وایی چه په (۹۴۹) ه کښې میاروښان قوی شو . او افکار ویې رواج وموند (۱) دلته د ده او د ده د حریفانو په منځکښې د مبارزې میدان ښه تود شو . کېدی شي چه د حکومت په لمن تشبث شوی وی . او دا هم احتمال لري چه ر ښتیاوی چه دروښان دعوتنامه کابل ته هم ورسېده په کابل کښې هغه وخت محسن خان صوبه دار ، یادونې ورځې په اصطلاح نائب الحکومه و ، او ده بده ومنله . او و دې شي چه د بل کوم سیاسي مصلحت په ملاحظه وی ، خود ده پسې ئې راو ډنګوله . دی یې ونیو . او کابل ته یې بوت ، دلته څه دده په خپله هو ښیاری او څه د نورو علماؤ او ملګرو په مرسته او شفاعت څه موده پس له بنده را خلاص شو .
دننګرهار لا چه پور ته راغی . ددې ځای تول خلق ئې خپل طرفدار کړل او خپل یاران او مریدان یې راغونډ کړل او د توتی غره ته چه د پېښور شمال ته واقع دی ، لاړ . له دې ځایه یې برالا دحکومت په مخالفت ملاوتړله (۲) خپل مخالفین به یې تالا کول . او په مال وسر به یې نه اېډکېدو .
اخون درویزه په مخزن کښې لیکي چه ده به دخپلو ملګرو سره دباچئی داخستلو تجویزونه کول .
دی په مسخرو سره وایی چه دوی په خپل مینځکښې ملکو نه وېشلی وو . یوه ملګری ته یې ډېلی ورکاوه هغه وویل زه ډېلی نه اخلم ؛ ډېلی په دې ورځو کښې خراب دی .

پس له څه مودې ، تیراته لاړ . په دې ځای کښې یې افریدی او ورک زی ، هم مریدان شول .
وایی په هغه وخت کښې اتمان خیل هم دتیراپه خواوشا کښې پراته وو .

روښان چه تیراته راته . اول چوری ته راغی . په دې وخت کښې مغولی افواج د دوی پسې راغلل . په دغه وخت کښې دغره دخلکو سره وسله نه وه . دچورې درمې په سختی مشهورې دی .
روښان مریدانو ته وویل چه دا درمې پر بکوی سرونه یې تېره کوی ، داستاسو وسله ده . نقل کا چه دغه درمو به په جنګ کښې دنیزو کار کاوه (۳) اومغلوته یې پرې شکست ورکړ (٤)
په تیرا کښې ئې دمغولو بر خلاف سخت تبلیغ کاوه چه دوې ظالمان دی ؛ اوپښتنو باندې ظلمونه اوتیری کوی . ددوی دجغ نه باید ځان خلاص کړو .

---

(۱) د بستان مذاهب .
(۲) مخزن ، تاریخ مرصع ، تذکرة الابرار والاشرار .
(۳) تاریخ مرصع (٤) تذکره داخون درویزه .

تیرائي عالم شاید په ظاهره دده سره وو ، اوباطن یې دمغولو سره رویه در سته وه ، هغوته یې وویل : چه تاسو په باطن دمغولو سره ئې . زماله طریقې مردودشوی . اوس بویه چه واړه خپل لاسونه پخپله وتړی ، راشی ؛ ستاسو توبه همدغه ده هغوی له اعتقاده یاله و پرې ؛ دیارلس سوو کسو لاسونه وتړل ورلره راغلل . وایې چه ټول یې جدا جدا ووژل ، او تیرائې له تیرایې خالي کړه . اودغره پښتنو ته یې ورکړه ، افریدی او ورکزي یې ټول خپل مرید کړ. القصه افریدی او ورك زی یې تمام مطیع اوفرمان بردارشو . (۱)

د تذ کرې په روایت سره : هر کله چه روښان دچورې په جنګک کښې دمغول فوجونه مات کړل اوتیراته ولاړ ! په آخره کښې دده طرفدارانو پښتنواتفاق پدې راغی چه تیرائی خلك ووژنو اویائې له تیراخخه خارج کړو ؛ ځکه چه ددوی په واسطه مغول تیراته را ځی . وائی پدې واسطه سره تیرائی خلك دده سره مخالف شول . ده وویل څوچه لاس تړلی ماته رانشی عفو به مونکړم : دغسی یې وکړه . اودوه سوه شل کسه ورته راغلل . ده هغه وو ژل ؛ اولنږخه چه خلاص شول ننګرهارته وتښتیدل . اوپه دغه سبب سره تیراله تیرائی خلاصه شوه .

تردې وروسته یې څوزره پیاده او څوزره سواره د ځان سره واخستل او په مغولو یې فوج کشی وکړه . اوننګرهارته ئې مخه وکړه . په برو مقام کښې دېره شو پدې وخت محسن خان له جلال آباده د دوی په مقابل کښې را وخوځید . په تور راغه باندې سخته جګړه وشوه . دلته روښان شکست وکړ . فوج یې تار پتار شو . پخپله په عین ګرمی کښې په غرو اور غو کښې پلی تر شاشو . په لاره کښې جل وواهه . چه اشنغرته ورسید . په کالا پانی ځای اوپه (۱۵۸۵) میلادی کال کښې مړشو . (۲) اوهمدلته په اشنغر کښې ئې ښخ کړ . چه وروسته ئې ځامنو هیوکی را وایستل په صندوق کښې یې دتبرك دپاره دځانه سره ګرځول . وائی چه د یو سفرو په جنګک کښې هغه صندوق اباسیندته واچول شو . احتمال لری چه وزیرستان ته یې وړی وی لکه چه هلته دده په نامه قبر شته .

پس دروښان له مرګه ګوندې دشر کټوی ماته شوه ؟ - نه ، روښان یه خپل اساس کښې داسې تیزې اوپخې خښتې لګولې وې چه تردده وروسته دخو پښتو پورې دده اولاداواحفاد اودده پیروانو کلونه کلونه دده دمسلك دحمایت دپاره سرونه په لاس کښې نیولی وو . ددې تفصیل دادی :

روښان پنځه ځامن درل : شیخ عمر ، نورالدین ، خیر الدین ، کمال الدین ، جلال الدین ، په ټولو کښې مشر شیخ عمر و ؛ دروښان له مرګه پس شیخ عمر دده په مصله کښېناست. شیخ عمر دخپل

---

(۱) تاریخ مرصع .

(۲) وګوری دجارج مارګین ستېرن مضمون په ( دهند اثار عتیقه ) مجله کښې .

پلار هلته کې له قبره راوایستل په صندوق کښې به یې د تبرک د پاره د ځانه سره ګرځول . شیخ عمر به خپل ځان د پښتنو باچا ګاڼه . په خپله دغه دعوه کښې تر یوه حده کامیاب شوی هم ؤ ؛ ځکه چه یوسفزیو دده ځینې اوامر قبول کړي هم وو . داسې چه ځینې خلکو به عشر او خراج ور کاوه . مګر ملك همزه خان اکوزی یې مخالف شو . شیخ عمر ، دی تالا کړ . او په دې سره د دواړو خواؤ تر منځه جنګ جوړ شو . اول جنګ په سور کاوی کښې وشو ، او روښانیان غالب شول . دویم جنګ په میني کښې وشو ، دلته همزه خان بری وکړ . په دې جنګ شیخ عمر او خیرالدین د دلازاکو له لاسه مړه شول . نورالدین وتښتید ، او مهمندزو ووازه . جلال الدین زخمی شو ؛ او سینده یې ځان وغورزاوه لیکن له سینده یې نجات وموند او په مندړو کښې د امازو قبیلې لاس ته ورغی . په دغه وخت کښې دی هلك ؤ ، نو ځکه دوی و نه واژه په شکست کښې د روښانیانو لښکر ډېر ومړ . ښځې او کوچنیان یې بندیان شول . په دې جنګ د روښان هغه وګړي اباسینده ته چه د میني په خوا کښې بهېږي واچول شول ، وایي چه شیخ عمر او خیرالدین په تور بیله مقام کښې چه د اباسیند ، هغه خوا دی . ښخ دی ځکه چه دوی هغه غاړه د دلازاکو له لاسه پس له شکسته قتل شوي دي .

نورالدین په اشنغر کښې مهمندزو او په یو روایت ګوجر و وژلی دی . نو ځکه مدفن یې هم دغلته دی .
په دې جنګ کښې معلومېږي چه د حکومت لاس ؤ . لکه چه د تذکرې د لاندې عبارت څخه څرګندېږي :

« پس له هغه موده څخه یو د روښان د خلیفه ګانو څخه لاړ . او د اکبر باچاه څخه یې د بندیانو د خلاصون خواهش وکړ . باچا ومانه . او بندیان ئې ایله کړل ؛ مګر جلال الدین یې خپل حضور ته وغوښت . او په خپل حضور کښې یې ساته په آخره کښې جلال الدین د اکبر له درباره و تښتید . تیرا ته راغی او د خپل پلار د مریدانو سره یو ځای شو . او د خپل پلار او ورور منصب یې ټینګ کړ . د اکبر له سختو دښمنانو څخه شو . او تل به یې چوراو چپاو کاوه . تر څو چه یو وخت یې په غزني چپاوو کړ دلته د هزاره ګانو له لاسه محاصره او مړ شو . وایي چه سر یې هندوستان ته ولېږه ، او نیمه تنه یې د کابل او نیمه یې د غزني په دروازه زوړنده کړه . وایي چه تر دې د مخه کمال الدین د اکبر په بند کښې مړ شوی ؤ .

پس د جلال الدین له فوته د شیخ عمر ځوی او د میاروښان نمسی چه احداد نومیدو . د خپل پلار او نیکه په لاره روان شو . د پښتنو مشر شو او د مغولو سره یې ډېرې جګړې جنګونه وکړل . چه دی هم ووژل شو ، د ده ښځه چه الائي نومېده او ځوی یې چه عبدالقادر یې نوم ؤ ؛ بر خلاف د مغولو د سیطرې وجنګېدل . عبدالقادر یې د خپلې مور سره په چل ونیو ، او د مغولو په لاس کښې مړ شو .

دعبدالقادر له مرگه پس ته په تیرا کښې یوسف نامې ابرېدی اوازار میرور کړی دروښانیانو په مسلك خه موده دمغولوسره په اختستوا یښودو کښې وو . په تیرا دېر جنگونه جدلونه وشوه په آخره کښې مغولو دوا لړه په عهدو قول سره راوستل شاه جهان بادشاه خان ته وغوښتل هزاری منصب یې ورکړ او له وطنه یې بې وطنه کړل . په پانی پت کښې یې ځمکه ور کړه .

افضل خان داشرف خان ځوی دخوشحال خان نمسی ؛ دتاریخ مرصع لیکونکی وایی « اوس سن هجری زر ـ ل درویشت دی چه هغه وطن ددوی داولاد په تصرف کښې دی . »

نوچه اوس حساب کوو ، در وښان په ایښې اساس دده د کړوسی یورې ، د ده اولا د او پیروان ، تقریباً یوسل وشپېته کاله دمغولو دزبردست قوت برخلاف وجنگېدل . بیانو هغه اورچه روښان بل کړی و ، اوبه لاسونو کښې یې توري چلولې ، په خو گلمن بدل شو . او په زړونو کښې یې ځای ونیو ، هیڅ شك نشته چه نن دې یې هم چېرته چېرته اثار څرگند یږی .

داخو یومجمل حساب و چه مونږ ستاسو په لاس درکړ . ددې واقعاتو څخه د ځینو تفصیل چه په تذکرو کښې ټکی ټکی زمونږ ترنظر تېرشوی دی . غواړو چه دلته یې غونډ و لیکو :

په طبقات اکبری کښې ئې راوړی دی چه ددوشنبې په ورځ شپږم د جمادی الثانی چه د هجرت زرم کال و ، اکبر باچاته خبر ورسېد چه جلال الدین چه په ټېښته عبد الله خان وزبك ته لاړو ، بیاراغی . اوبنیاد یې دفساد اوفتنې آغاز کړ . نو د نوروز په ورځ یې جعفر بیك چه بخشی و ، رخصت کړ . چه د کابل دوالی : محمد قاسم په اتفاق د جلال الدین مهم ته سرکا او د شعبان په آخره په همدغه کال کښې یې زین خان کوکه د سوات او با جوړد اباد انی او د جلال الدین دو هلو او د پښتنو د تنبیه او استمصال د پاره ولېږه . (۱)

په طبقات اکبری کښې یې راوړی دی چه جلال الدین په هغه وخت چه عمر یې د خورلسو کالو و ، په سن دنه سوه اته اتیا چه اکبر له کابله راو جاروت په ملازمت د بادشاه راغی مهربانی یې دېره ورسره وکړه . پس له خوورځو تري وتښتید. پښتنو ته راغی . فسادیې اغاز کړ . لاره یې د کابل او د هندوستان بنده کړه .

اکبر په رفع دفع د دوی کنورمان سنگه تعین کړ او کابل یې دده په جاگیر کښې ورکړ . هر کله چه خبر را ورسېد چه زین خان کوکه د پښتنو سره په جنگ جدل گرفتار دی د صفرې په دویمه او همدغه کال یې سعید خان گگر ، اوراجه بیر بر ، او شیخ فیضی ،

(۱) تاریخ مرصع

او فتح الله خان شیرازی ، اوتاش بیگ او صالح عاقل ، او نور ډېر لښکر په کومك، او مدد د زین خان کوکه رخصت کړ، اوپس له څو ورځو اې حکیم ابو الفتح له نوره جماعته سره هم په کومك د زین خان روان کړ . کوم وخت چه زین خان ته دا امیران را ورسېدل ، نو د پښتنو په تاخت او تاراج یې لاس پورې کړ . او وړاندې به تلل . وایي چه راجه بیر بر بې د زین خان له اتفاقه کوچ وکړ . مازیگرو چه د بلندری غاښي ته راغلل . پښتانه پرې راواو وښتل په غشو په توپکو ، په کانړویې ویشتل . لار باریکه ، شپه تاریکه ، مغول نابلده . لاره یې غلطه کړه ډېر په هلاکت ورسېدل . او فاحش شکست یې وخوړ . او اوه اته زره خلق ډوب شول . په دې جنگ کښې راجه بیربر ، و مړ . راجه ننې او راجه درم چند او خوا جه عرب ، چه د دغه فوج بخشی و ، او ملا شیرین شاعر ، اونورښه نامداره خلك په دغه شپه په جنگ کښې مړه شول زین خان کوکه او حکیم ابوالفتح په بد حال په ډېر محنت اټك ته راو رسېدل . په دې واقعه اکبر خورا ډېر خفه شو او دوی یې له سلامه منع کړل. پس له دې یې راجه تو درمل د دې واقعې د تدارك او تلا فی د پاره د ډېر لښکره سره د غه کار ته تعین کړ . دی راغی او یو سفزی یې تاخت و تاراج کړل . او ملك یې پرتنگ کړ . په دغه وخت کښې اکبرته خبر را ورسېد . چه د ملو راء النهر دبادشاه عبدالله خان ایلچی د ډېرو سوغاتو سره راځی. او نور معتبر مېلمانه هم ور سره دی. اکبر شیخ فرید بخشی او احمد بیك کابلی سره له لښکره د دوی استقبال ته ولېږل چه له خیبره یې را تېر کا . دا لښکر چه ورغی . جلال الدین دخیبر لاره نیولې وه . ډېر جنگ وشو . او دواړو خواؤ یکښې ډېر تلفات ورکړل . په دې جنگ کښې راجه مان سنگه چه د کابل په حکومت مقرر شوی و او د لښکره سره کابل ته ته ، هم شریك و . (۱)

په طبقات اکبری کښې راوړی دی چه د هجرت په نه سوه شپږ نوی کال اکبر ته خبر راورسېد چه جلال الدین بنگښوته لاړ . نوا کبر عبد المطلب خان چه دا کبر د لو یو امراؤ څخه و ، او محمد قلی بیگ افشار ، او حمزه بیگ افشار ، او دارنگه څو امراگان په استیصال د جلال الدین وبنگښ ته تعین کړل. هر کله چه دالښکر بنگښوته را ورسېد جلال الدین دډېروسوورواوپیاده ؤ سره جنگ ته راغی . شدید جنگ وشو پښتانه اومغول ډېر مړه شول . له دې پس جلال الدین په غزنی یرغل وکاوه . اودهزاره ؤ له لاسه مړشو .

(۱) تاریخ مرصع .

دهجرت په یوزروشلم کال احداد بروزوکړ . اوښکاره شو . (۱) هغه پښتانه وغیره چه دروښان مریدان وو ؛ واړه زیات تر روښانه په ده وگروهېدل . دی اول په تیرا کښې ؤ . پهدغه وخت کښې دپېښور صوبه‌دار مهابت‌خان ؤ . مهابت‌خان داحداد له پیروانو څخه « تیر صو : شاید درې سوه ئې مرادوی » دولت زی په تمه توقع اوپه قول اوامیدواری ځان‌ته راوبلل . په دغه وخت کښې ددولت زی وملك ، ملك ، اصغرؤ ؛ چه دملك تورتره‌ؤ . ددې ډلې‌مشر ملك‌تورؤ . اودملك اصغردوه ځامن چه شمسي اورسول نومېدل هم پکښې وو . مهابت‌خان‌ته چه ددولت زیو داجرگه راغله . ده دا خوښه کړی چه دا سړی ټول ووژنی اود احداد پسی لښکرو کړی . دمهابت‌خان په دې اراده ملك تور پوه شو . ځان ئې په چلول دپېښوره‌وایست . نورو پښتنو ته ئې هم دمهابت‌خان له ارادې څخه خبرورکړ . لیکن هغوباورونکړ . څوچه مهابت خان په حیله سره له پښتنونه وسلې واخستې اودوی ئې یو یووژل . بیانودغیرت خان په‌سر کردگی‌دوه ویشت امیران په مهم دتیراو کوهات په‌لاره تعین‌شول . داسماعیل زیوپه وطن کښې دسنگ پاڼه ترغاښې لاندې ئې واړول . دولت زیودملك‌تورپه مشری دروښانی احداددحکم لاندې دغاښی سرورته ونیو . په سبامغول‌سواره شول اوجنگ‌ته راغلل . غیرت خان دمغولودفوج مشردملك‌تور مورچې ته ورسېد . اوراجپوت دروښانیانومورچې ته ورغی . جنگ جوړشو . په دولت زیو کښې پنجونامی فیروزخان خیل دغیرت‌خان سره غیز په غیز شو . دواړه یوله‌بله‌پریوتل پنجو نار ی کړی چه ماهم ورسره ووی خودی درنه لاړنشی څوبی دواړه دبله ووژ ل . چه غیر ت خان مړ شو . مغولوماتې وکړه بېحسابه مړه شول . دنورولوټ نه پرته یوازې اسونه پنځه زره دپښتنو په لاس کښېوتل . په دی شکست مهابت‌خان سخت متأثر شو .

چه دملك اصغرشمسي اورسول ځامن مړه شول ( لکه مخکښې موووېل ) نوده خپله ملکی ملك تور عبدالعزیزخیل‌ته وسپارله . ځکه چه بل فرزندئې نه ؤ . له دې پس‌ملك تورله احداده په څه وجوهاتو آزرده شو . ددوی په مینځ‌کښې نزاع پیداشوه . ملك‌تورمغولی شو . او دمغولو لښکر یې تېراته بوت . دی وړاندې شواحدادیې له تیراڅخه وایست . احداد په لوا غره کښې دختکوپه چبوتره نوماندې ځای کښې ډېره شو . له دغه ځایه به‌یې همیشه په هرلوری داړ ی او یرغلونه کول . لښکرورسره ډېرؤ . اودهرقام سړی‌دده دحکم لاندې و و . داحداد د ښځی الائې نوم‌ؤ . داډېره ښایسته اودعقل‌اوفراست خاونده ښځه وه . داحداد ځوی عبدالقادر نومېد .

(۱) درضوانی شکرستان . اوجهانگیر نامه

احداد په دې دواړو له حده زیات مین ؤ . هر کاربه یې ددوی بې مصلحته نه کاوه .

یو زل احداد دخدري اکوړ خیل په لار ښودنه دیحیی خان دسرداری په وخت کښې په خیر آباد چپاوو کړ . خیر آبادئې تالا کړ . دجاروتو په وخت کښې خضرخان اکوړ خیل دچوړ یانمی په وره کښې پسې ورغی . جنګ یې وکړ . خضر خان مړ شو . (۱)

دجهانګیر دجلوس په شپږم کال په یو زروسل هجری سنه کښې چه په دې وخت خان دوران په داوخت له ډېره سپاهه سره په حدود دننګرهار او بنګښ ؤ ، او معزالملك بخشی د لږ جمعیته سره په کابل ؤ. احداد فرصت غنیمت وګانه. دډېرو سورو او پلو سره کابل ته ورغی . معزالملك دکابل کوڅې بندې کړې . او جنګ ته مخامخ شو . پښتانه ډېر وو او له هرې خوا په کوڅه او بازار یې پرهله وکړه .

معز الملك دمقاومت تاب رانه وړ . په کوټ ننووت دمغولو طرفدارا نو ځان ټینګ کړ ، له دواړو خواؤ څخه ډېر خلك مړه شول. پښتانه زیات و کم سل کسه ومړل. او احداد بېر ته وجاروت . په دې ورځو کښې نادعلي میدانی په لوګر کښې ؤ، خبر ور ورسېد له هغه ځایه راروان شو. خو پښتانه تللی وو. وایی چه په دغه ورځو کښې فتح خان دجهانګیر له حضوره دکابل په حکومت او د احداد په تنبیه او دپښتنو په ضبط تعین شو . (۲)

وایی هر کله چه مظفر خان دخواجه ابو الحسن ځوی کابل ته راغی خبر ورته راورسېد چه یلنګتوش وزبك د فتنې او شورش په عزم غزنی ته راغی . نو ناعلاجه مظفر خان د خپلو تعینا تو سره دیلنګتوش پسې روان شو. په دې مینځ کښې احداد قابو ولیده . یلنګتوش په اشارت تیراته راغی . او دمغولو سره یې جګړه شروع کړه. یلنګتوش په خپل عزم پښېمانه شو. او له خپلو عزیزانو څخه یې یو سړی مظفر خان ته واستاوه . او د صلح خواهش یې وکړ. یلنګتوش له مقدمې څخه مخ په شا شو. او مظفر خان داحدادو خواته مخه ونیوه . چه احداد ده له واقعاتو څخه خبر شو. نو یو ازې یې جنګ ته تا بیارا نغله او دلواغره ته وجاروت هلته یې ځای په ځای مورچې وتړلې یې؛ محکمې یې ډېرې وکړه . ذخیره او توښه یې غونډه کړه . او ډېر د جنګ اسباب یې تیار او اماده کړ . مظفر خان هلته ورغی پنځه شپږ میاشتې جنګ ؤ. ددوی په مینځ کښې ډېر جنګ او جګړه او زد و خورد و شو. په آخره کښې دجمادی الاول په اوم تاریخ ددوشنبې په ورځ، پس له دې چه درنې پهره جنګ وشو؛ کوم وخت چه احداد دمورچه بندی په خیال له یوې مورچې څخه بلې ته تلو؛ په ټوپك ولګېد، او مړ شو. پښتا نه

(۱) تاریخ مرصع

(۲) تاریخ مرصع .

پس لدې تنګ شول. او مورچې یې پرېښودلې. پدې مینځکښ داحداد دلښکریو سړی دانعام په نیت داحداد توره او چاړه او ګوتې یې مظفرخان ته راوړې. دده یقین وشو. دسړی سره روان شو. ویې لیدل چه احداد مړ پروت دی. مظفرخان په دې برې ډېر انعامونه واخستل. منصب او اضافه یې بیامونده. داحداد له مرګه پس یې لښکر سره ګډوډ شو. او خپله کورمه یې دلواغره یو سخت ځای ته وختل. دمغولو لښکر راوجار ووت.

څه موده پس داحداد خپلخانه دالایې او عبدالقادر سره تیراته راغله وائی دجهانګیر دجلوس په شلم کال دجمادی الثانی په اتم کوم وخت چه جهانګیر دښکار په نیت کابل ته را روان شو. او دښار په ګردونواح کښې یې څوورځې ښکار وکړ. نودجمعې په ورځ او دروېشتم دجمادی الثانی یې کوچ وفرمایه. پدې وخت کښې افتخار خان داسد بیګ خان کابلی څوی داحداد سر جهانګیر ته راوړ. بادشاه دشکر سجده وکړه. ښادنامې یې وغږولې. حکم ئې وکړ چه لاهور په دروازه یې ځوړند کړی. (۱)

کوم وخت چه جهانګیر مړشو او شاه جهان یې په ځای کښېناست. هغه وخت چه لښکر خان د کابل صوبه دارؤ؛ په دغه وخت کښې عبدالقادر له تیرانه لښکر کشی وکړه؛ او پېښور یې محاصره کړ. دلښکر خان نائب یې وواژه. اطراف او جوانب او دپښتنو ټول اولوسونه دمغولو په بدی متفق شول. پېښور یې محاصره کړ. شهباز خان چه دمغلولو سر، ودی یې په اټک ئی محاصره کړ. دبنګښو صوبه دار چه سعیدخان نومېده، راورسېد او د پېښور په محاصره کښې ننووت. اول او ابتدا محاصره عبدالقادر کړی وه. په آخره نور پښتانه هم پکښې شریك شول رشك یې پیدا شو؛ چه نوم دعبدالقادر کېږی. دعبدالقادره سره یې مخالفت راواخست عبدالقادر وپوهېد چه دوی به دمغولو سره سازو کا، او ما به نیولی ورکا. لدې وېرې یې شپه په شپه کوچ وکړ. او دخپل لښکر سره تیراته ولاړ. مغول پدې حال خبر شول. له کلانه راووت د پسمانده پښتنو سره یې جګړه وکړه. ډېر یوسفزی او ګیګیانی پکښې مړه شول؛ او شکست یې وخوړ. داواقعه چه دشاه جهان غوږ ته ورسېده، په یوزل یې سعیدخان ته پنځهزاری منصب او دکابل صوبه داری ورکړه. او دکابل په صوبه کښې بیامغولی عمل وچلېد. مغلو عبدالقادر او الایې په عهد او قول سره پېښور ته راوستل. په څو شپو کښې عبدالقادر وفات شو. مغولو بیا تیراته په احدادیانو پسې لښکر کشی وکړه. پدې وخت یوسف افریدی او ازار میر، ورکزی چه داحدادیانو دلښکر سرداران و؛ دمغولو دافواجو سره ډېر جنګونه وکړل. وایی چه یوسف افریدی داسې بهادر ځوان ؤ، چه

(۱) تاریخ مرصع او جهانګیر نامه

داحدادیانو په‌لښکر کښې په‌مړانه دده ثانی‌نه‌ؤ . په‌دې مهم کښې ده داسې توري ووهلې چه عالم ورته حیران‌شو . په‌آخره کښې‌یې دوی دوا‌ړه‌هم په‌چل‌ول راوستل او‌پاني‌پت‌ته‌ئې فرار کړل . هلته‌یې ځمکه ورکړه . (۱)

روښان ډیر تصنیفونه اوتالیفونه‌لري . اخون‌درویزه ډیر ځایونه‌وائي چه‌روښان ډیري رسالې اوکتابونه لیکلي‌دي . په‌دبستان‌مذاهب کښې‌لیکي چه‌میاروښان په عربي ، فارسي ، هندي اوافغاني کښې زیات تصانیف‌لري . له‌دغه‌جملې څخه «مقصودالمؤمنین» یو کتاب‌دی چه‌په عربي‌لیکلی‌شویدی بل کتاب‌یې «حالنامه»ده .

بل‌دروښان دتصنیفونوڅخه خیرالبیان‌دی . چه‌دروښان په‌ټولوتصانیفو کښې زیات‌شهرت لري زمونږهم دهمدغه کتاب‌سره کاردی . ځکه چه‌له‌دی کتابه‌څخه دپښتودنثرنمونه زمونږ لاسوته راسپړلې‌ده . خیرالبیان په‌څلوروژبو : عربي،پارسي، هندي اوپښتولیکلی شویدی . خیرالبیان دڅه‌شي‌بحث کوي ؟ ددې پوښتنې مجمل جواب‌دادی چه‌خیرالبیان دشریعت اوطریقت (تصوف) بحث کوي . دولت په‌خپل دیوان کښې وائي :

«په‌څلور لفظه‌ئې جوړ خیرالبیان کړ موافق شو په ایات په حد یشونه»

اوس غواړو چه‌دخیرالبیان دمتن څوټوټې چه‌زمونږ په‌لاس کښې دي دلته ولیکو .

۱ـ «نبي ویلی دی ، رحمت دې وي په ده : مرگ به‌ورشي وسړي وته نا گهان ! ـ نشته دسړي په‌دنیا کښې تل‌دتل‌مقام ! ـ گوره ، ددغې زمانې ادمیان ! ـ غواړی‌دنیااوهر چه پکښې دی مشغول‌دی ډیر ادمیان ! ـ ځینې په‌کرلو ، یاپه‌بازارگانې ، یاپه‌پوندگلې ، یاپه‌تورکښې باندې ، ځینې په‌نورنور چارمشغولی‌کا آدمیان ! ـ »

۲ـ «دکمې میاشت که‌یوکس وویني روژه‌دې نه‌ماته‌وی گوښې ، که‌علت‌وی په آسمان . گواهي دې نه‌قبولوی ، امام ، بیرون ددوه‌میړه ، اویایومیړه دوې اروتې وی ـ که علت‌نه‌وی په آسمان . گواهي دې نه‌قبولوی امام ، بیرون دډیرو ادمیانو . »

۳ـ ویلی‌دی سبحان : کب چه‌په‌اوبوکښې گرزی‌مخې واوبووته‌شی، هسې هرلوروته‌چه وجار وزی مخ‌ئې وماوته‌شي دادمیانو . »

دروښان دنثرلیکلو خصوصیات : مارگین سټرن ناروېژی‌مستشرق چه‌خیرالبیان‌ئې لیدلی‌دی ده ورڅخه لاندې مواد یاداشت کړیدی :

(۱) خیرالبیان دنورو ډیرو پښتو قدیمو کتابوپه‌شان چه‌تر ده وروسته لیکل‌شویدی و،ی، ه تردې چه‌ظاهره (ه) هم نه‌لیکي .

---

(۱) تاریخ مرصع :

(۲) دخیر البیان داملائی خصوصیاتوڅخه داده چه څو کلمې سره نښتې او یوځای لیکی . مثلا (خویږویدی) د (خوی هوی دی) پرځای . په شپږ ډېر گرزی داسی لیکی : (پشپږیرگرزی) یکښې مې مرکب لیکی یعنی (یکښېمې) .

(۳) دپښتو خاص حرفونه لکه ټ، ځ، ډ، ړ، ښ او هم دارنګه ږ دنن ور ځې درسم الخط په شان لیکی. شاید (ښ) په حلقه او (ځ) په درې ټکو دپاسه لیکی .

(٤) بایزید ارمړاود وزیرستان دی . مگر دده دلیکلو معیار خپله لهجه نده ؛ دده دلیکلو ژبه اکثره دنورو کلاسیکی ادب دکتابو سره چه ظاهراً دهغو اساس دیوسفزیو په لهجه ایښودل شویدی مطابقت لری. مثلا دلیار (راه) گیمنې (عسل) ویائی (میگوید) مېر (افتاب) اپتو (ازتو) څلوېر (چار) په ځای چه دوزیرستان لهجه ده ؛ لار، گبینه، وائی، نمر، ستا څلور، لیکی .

داڅو څیزه نورهم دخیر البیان دسبك خواص دی :

(٥) دخیر البیان په نثر کښې دعربی رنگ ښکاره اوظاهر دی. جمله بندیئې عینا دعربی په سبك تطبیقیږی .

(٦) دمقفی نثر اولینه نمونه دخیر البیان څخه لاس ته راځی . ځکښې تر ده مونږ دډې رقم نثر سراغ نه لرو.

(۷) په پښتو کښې دومبنی کتاب چه دتصوف داساسی نظرئی ( وحدة الوجود ) بیان پکښې وی خیر البیان دی .

(۸) په پښتو کښې اخلاقی، دینی، مذهبی مضامین لیکل اود آیاتو نو اوحدیثو نو ترجمی کول هم لکه چه تر نوووړځه خیر البیان شروع کړی وی . وروسته بیاډېرو پښتنو په دی بابکښې څه لیکلی دی چه مکمله نمونه ئې تفسیر یسیر دی .

جارج مارگین سټرن ښه حدس وهلی دی چه ویلی ئې دی : « داخبره چه د خیرالبیان دپښتوټول صحیح حرفونه جداعلامې لری . . اودارنگه داچه ځینی له دغو څخه دهغه حروفو سره چه اخون درویزه مستعمل کړیدی مطابقت لری په یوپخوانی ادبی روایت دلالت کوی . ځکه خیال ته نه راځی چه دې مدافع اوحامی دایمان به داملا په طرز کښې هم دخپل حقیر دښمن تعقیب اوپیروی کړې وې ! » لکه چه دسلیمان ما کودتذ کرة الاولیادنمونې څخه مونږته معلومه شوه چه عینادغه خط اودغه املاء بلکه تر دې وخت مکمل تر ه لا دهجرت په شپږمی پېړی کښې موجوده وه !

سوی پل ( پل سوخته )

# فهرست شهرهای افغانستان

ښاغلی عثمانخان « صدقی »

باین عنوان میخواهم بعض ازشهرهای سابقه وحالیهٔ سرزمین باستانی آریانارا از نظر خوانندهٔ گرامی بگذرانم. آریانای قدیم از آن وقتیکه جایگاه نژاد آریائی شد بسی مراحل زندگانی راطی کرد . بسی شهرهارامردم آباد کردند امادست روزگار آنهارا طوری از میان برد که حتی تاریخ هم نتوانست بحافظه نگاهدارد . کی میداند که چه شهرها آبادشد چه نامها گرفت وباچه علل ازمیان رفت . بهرحال تاجائیکه صفحات تاریخ زمان کهن وکتابهائیکه ما به آن دست رس داریم مساعده کرده اسمای چندی را گرد آورده خواننده عزیزرا به آن متوجه میکنم تا اگرروزی اودسترسی پیدا کرد دقتی به آن کند واین سطور مجمل و مختصر را که هستهٔ آن خواهد شد بحال رشد ونمودرآرد . من درین صفحات اندك چیزی که میتوانم بکنم ازین شهرهانام می برم وتفصیلات مزید آنهارا تاجائیکه جمع شده در خود رسالهٔ کو چکی می بینم که بهمین زودی تقدیم محیط مطبوعات خواهد گردید . درین مقاله خوانندهٔ عزیز شهرهای را که درزمان قدیم بوده وحال وجود ندارد ، شهرهای که درزمان قدیم بوده وحالا بصورت قصبهٔ موجودست وآن شهرهای که پسان آبادان گردیده وهنوزهست وآن شهرهای که اززمان قدیم تا کنون همچنان باقی است خواهد دید . البته یکی دوسطر تفصیلاتی که راجع بهرشهر داده میشود بهتناسب اهمیت و یادسترس ما به آن است ، اینك بمطلب آغاز کرده به ترتیب الفباشهرهارا مینویسم .

## آرتاکوانا :

(آرتاکوانا) یا (آرتاکانا) شهرشاهی مردم آریه ودرجوارشهر حالیه هرات واقع بود ونشیمنگاه حکمران ولایت هرات شمرده میشد . این شهر درجای ارگ کنونی هرات بوده .

## آریاسپ :

شهر بزرگ مردمان آری سواها یعنی سواران اسپ های اعلی که درولایت درنجیاناواقع بود.

## آزولا :

یکی از شهرهای معروف ولایت اراکوزیه بوده و غالباً گذر یا گنداوستان واقع درهلمند علیا باشد .

## آقچه :

شهری‌است درولایت باختر ( ولایت مزارشریف ) بفاصلهٔ ۲۴ میل بغرب بلخ .

## آهنگران :

شهری درولایت غور و پایتخت آخرین پادشاه محلی غور بود که درقرن یازده از دست غزنویان منقرض گردید وامروز بحال قریهٔ درآمده .

## آراکوتی :

مرکزناحیه کنارِرودخانهٔ اراکوتس ( ارغنداب ) بوده .

## ارمن :

درولایت هرات شهری درجنوب غربی قلعهٔ نو بود که حالا خرابه می باشد .

## اسپی :

شهر بزرگ درمناطق شرقی افغانستان و متعلق بقوم اسپیسیان ها غالباً در کنار یکی ازمعاونین رود کنرواقع بوده .

## اسفزار :

اسفزار یاسبزوار یاشین دندشهری دارای فصیل مستحکم وچاردروازه در ولایت هرات واقع ودرمرکزمنطقه شادابی افتاده . موهن‌لال سیاح این منطقه را بابهترین قسمت زرخیز هندوستان برابرمی داند . این شهرمولدبساعلماوفضلای نامدارماست . درکشا کش مهاجمین مانند سکندر ، چنگیز وتیمورخیلی صدمات برداشت . اکنون هم موجودست .

## اسکندریه آریا :

قلعهٔ نظامی که اسکندرمقدونی برای رهایش سپاهیان یونانی درهرات بساخت .

## اسکندریه اورنوس :

قلعهٔ نظامی دیگری که علما آنرا درخلم ویاشهر اوکراتیدس می‌دانند .

## اسکندریه قفقاز :

قلعه نظامی ساختهٔ اسکندر که غالباً درپروان حالیه بوده .

## اشکمش :

شهری در ولایت تخارستان ( قطغن وبدخشان ) نام قدیم آن وزوالین بوده و بسی علما ازان برخاسته .

## العسکر :

شهر کوچك شاهی درجوار بست .

## انبار :

شهری بود درولایت باختر که درقرون وسطی مرکز مهم تحریکات بر خلاف امویان گردید غالباً یکی ازشهرهای عمدهٔ جورجان بوده .

## انداکا :

شهری قدیم درصفحات لغمان بود احتمال میرود که ادرك باشد .

## اند خوی :

درشمال غرب بلخ درمجاورت سرحد افغان وشوروی بر کناررود سنگلاك واقع است اکنون ازمراکز عمدهٔ تجارت شمرده میشود .

## اندراك :

شهری قدیم در درهٔ کنر بود که حالا معلوم نیست .

## اوبه :

شهری است بسمت شرقی هرات بفاصله (۵۰) میل بسی علما وفضلا بدامن آن پرورده شده .

## اورنوس :

ازشهر های قدیم افغانستان بوده که موضع آن بموقعیت شهر قدیم و مستحکم سمنگان نزدیك ایبك کنار رود خلم موافقت می کند .

بعضی آنراخلم دانند علاوه برین به این نام قلعهٔ مستحکمی درنواحی شرقی آریانا در کنار اکسوس وجود داشت .

## اون پایکال :

در ولایت باختر واقع درشمال غرب شهر نملیك که امروز بحال خرابه درآمده . بارتولد احتمال می دهد که ایوکراتیدیا باشد .

## ایبك :

شهریست در ولایت مزارشریف که درافسانه ها بسی شهرت دارد . در زمان قدیم یکی ازمراکز دین بودائی بوده تخت رستم که از آبدات تاریخی است درجوارآن واقع است .

## ایوکراتید یا :

شهریست که ایوکراتیدس شاه یونانی - باختر آنرا درکنار رود خلم بنا کرده بود . وروی خرابه های آن خلم آباد گردید .

## بامیان :

دربین کوهای هندوکش وبابا در یك وادی کوهستانی واقع است . در زمان های قدیم مرکزیت تجارتی داشت دوراعتلا وارتقای آن دوره های قبل از اسلام بود هیون تسیانگ آنرا ( فان - ین - نا ) یاد کرده . بامیان در زمان قدیم بزرگترین مرکز آئین‌بودا بود • بت های بامیان که ازعتایق بی نظیر جهان است ازیاد گارهای آن زمان است . در اطراف این بت ها افسانهٔ های زیاد وجود دارد . مجسمهٔ خوابیدهٔ بودا که ازین عصریاد گار مانده بود درقرون وسطی‌ازبین رفت وبمعابد وبت های‌بامیان‌بسیار‌صدمات‌رسید. یعقوب‌لیث در۲۵٦ هجری آخرین معبد آنرا ویران نمود .

شهزادهٔ بامیان را شیر یاشار که معنی یاد شاه داشت می‌گفتند . شهزادگان بامیان درزمان المهدی مسلمان شدند واز دست غزنویان منقرض گردیدند .

## بامئین :

درایالت بادغیس ولایت هرات شهر مهم ومرکز بادغیس بود .

## بدخشان :

شهر قدیم وپای تخت ولایت بدخشان بود که‌حالا جایش معلوم نیست احتمال می دهند که برجای فیض آباد حالیه کائن بوده .

## بروقان :

شهری درجوار بلخ بوده .

## بسغور قند :

ازشهرهای عمدهٔ حوالی بامیان بوده .

**بست :**

آثار شهر کهن وتاریخی بست بر ساحل چپ رود هامند واقع است . بست یکی ازمراکز مهم تمدن باستانی بود . در اوائل قرن ششم مسیحی بدست افتالیت ها افتاد . بعدها در اثنای قشون کشی های اعراب عبدالرحمن بن سموره بر آن دست یافت . چون شهر بست موقعیت مهم داشت از طرف مسلمانان عرب مرکز قوای عسکری قرار یافت و برخلاف شاهان کابل استعمال گردید . ازوقت تصرف مسلمانان تادورسلطان های غزنی بست شهرت سابقهٔ خود را ازدست داده بود . درسال ۳٦٦ بست بدست غزنویان افتاد . درقرون وسطی دور مجد و اعتلای بست دورهٔ غزنی است . بست را مورخین مکرراً بنام دار السلطنه یاد کرده اند یکصد سال بعد ازان علاء الدین جهانسوز این شهر قشنگ را ویران نمود . درحقیقت بست از همین روز خراب شد . در اواخر قرن هشت هجری سیلاب تیمور لنگ در مملکت ما سرازیر شد و بست صدمهٔ شدید دید . تیمور بند رستم را که منشأ آب اراضی بست بود خراب کرد پس ازتیمور تند باد فتنهٔ نادر افشار بکلی آنرا از پا درانداخت . اکنون این شهر تاریخی متروک و فقط من حیث شواهد تاریخ باقی مانده .

**بشت :**

شهری درایالات بادغیس که حالا مجهول است .

**بغلان :**

مرکز امروزی ولایت تخارستان است . بغلان در ٤١ میلی جنوب قندوز دریك میدان وسیع وقوع دارد بغلان در دوره های تاریخی نیز اهمیت داشت نام تاریخی آن ( بوهلای ) است که بغلان تحریفی از آن میباشد . بغلان را هیون تسیانگ ( فو ـ کیا ـ لانگ ) نوشته در زمان های گذشته نیز آبادان بود . زمین مستعد دوباره آنرا طرف توجه قرار داد وفابریکه شکر ریزی درهمین جا تاسیس گردید . آیندهٔ آن روشن است .

**بغنین :**

شهری بود در زمین داور ومسکن اصلی خلجی‌ها اکنون مجهول است .

**بلخ :**

قدیمترین شهر های مملکت ما بلخ است . این شهر ازاولین تاسیسات آریائی هائیست که درولایت باختر قدم گذاشتند . ازهمین جهت قدامت آنست که آنرا ام‌البلاد خوانند . بلخ را یونانیان (باکترا)

ودرفارسی قدیم (باخترش) ودرزمانهای مابعد (باخل) و( بهل ) خوانده وبر آن صفت (آی بامیك) یعنی درخشان‌راعلاوه می‌نمودند. موسس اصلی آن معلوم‌نیست. آنچه معلوم‌است اینست که بلخ شهر بسیارقدیم ومنبع جمیع مدنیت های آریائی بود . سلسله‌های سلاطینی که این‌شهر پایتخت‌شان بود بدست تاریخ نیست ولی درافسانه‌ها خیلی‌شهرت دارد که بعضی مورخین امروزی اشتباه کارا نه اسمای آنهارا بدیگران نسبت میدهند مثلاً ازآن جمله کیکاوس پادشاه باختری را باسیروس پادشاه هخامنشی یکی میدانند حالانکه فاصلهٔ زیادی دربین این دو پادشاه بوده . سلسله های پیشدادی ، کیانی وغیرذلك همه افسانه‌های است که بتاریخ سلاطین سابقهٔ بلخ اشاره می کنند .

تاریخ بلخ تاپنج قرن قبل ازمیلاد عجالةً تاریك است ولی بعد ازقشون کشی اسکندر قدری روشن میشود .

زردشت یکی از شهزادگان بلخ بود . وقتی که او می‌زیست (ویستاسپا) پادشاه بود . در دربار بلخ علمای زیادی وجود داشت ازاوستا معلوم میشود که باختری قدیم محیط علمی ، فلسفی واخلاقی داشته است درتاریخ ملل دیگر ازمقاومت باختر درمقابل‌عساکر رامسس فرعون مصری نینوس وسیمی رامیس ذکری‌بمیان آمده . عساکر کروش پادشاه هخامنشی درجنگ‌های باختر بسا سختی دیدند وخود کروش درجنگهای ایالات غربی افغانستان کشته شد .

دردورهٔ قشون کشی اسکندر این‌شهر بدست اوافتاد بعد از اسکندر درباختر دولت یونانی ـ باختر بوجود آمد .

ازنقطهٔ‌نظر صنایع وآرت این دوره یکی ازدوره های مهم تاریخ آرت می‌باشد . این دوره موجد فن گریك ـ بودیك شد که‌نمایندهٔ اختلاط مدنیت شرق وغرب می باشد .

بعد ازان کوشانی‌ها اقتدار بهمرساندند مذهب بودا ترقی شایانی نمود . هیون‌تسیانگ بلخ‌را (پوهو) می‌خواند .

بعدازان هیاطله به آن دست یافتند وازان ببعد بدست مسلمانان عرب گذشت . صفاریها وسامانیان بعد ازان حکمفرمای بلخ شدند در دورهٔ غزنوی بلخ یکی ازپایتخت‌های سلطان‌محمود گردید واهمیت مخصوصی کسب کرد . بعد ازان بلخ صدمه دیده رفت تابالاخره درحمله چنگیز خراب گردید وازان ببعد بحال شهر کوچکی درآمد درسال ۱۸۶۶م مرکزولایت باختریانه ازبلخ بمزارشریف انتقال یافت اکنون درنظراست که‌تجدید این شهر تاریخی کرده شود .

**نجهیر :**

شهری دردرهٔ پنجشیر بوده .

**بوئن :**

یکی ازشهر های معروف ایالت بادغیس بوده .

**بهارستان :**

بهارستان ازشهر های تاریخی تخارستان است در دوران امپراطوری کوشانی (لانشی) نام داشت . بعداً بهارستان وامروز بهارك شده . این شهر ۲۸ میل بجنوب شرق فیض آباد واقع است .

**بهلول :**

شهری درعلاقه یوسفزئی .

**بیوار :**

ازشهرهای قدیم غرجستان که اکنون مجهول است .

**پروان :**

شهر کوچکی بردریای پنجشیر بشمال کابل وجنوب درهٔ پروان، پروان دارالضرب غزنویان بود اسکندر مقدونی اسکندریهٔ ققفازرا غالباً درهمین جا ساخت . درعصر امیر حبیب الله خان نام آنرا جبل السراج گذاشتند وفابریکهٔ بزرگ برق را در آن تاسیس کردند .

**پروفتازیا :**

شهر قدیمی درولایت سکستان . پروفتازیا باپشاورن تطبیق شده .

**پغمان :**

شهر کوچك ایلاقی بفاصله ۱۸ میل بغرب کابل که هوای خوب و صحت افزا و مناظر وعمارات قشنگ دارد .

**پلخمری :**

پلخمری جائست کهفابریکه بزرگ نساجی افغانستان در آن تاسیس شده . قبلاً آبادنبود درآینده امید میرود کهشهر بزرگ صنعتی شود .

**پنجوای :**

شهری درولایت اراکوزیه که ازقندهار چندان دورنبوده حصار خوب ومستحکمی داشت .

**پیشین :**

شهری درمشرق سجستان که جوزجانی آنرا افشین خوانده .

دنثر اقسام : نثرهم لکه دنظم‌دوه تقسیمونه لري یومعنوي اوبل لفظي، دنثر اولی اقسام دمعنی په لحاظ دري دي : ۱- محادثه ( خبري اتري) ۲- خطابه ( وینا ) کتابت ( ښکل ) محادثه هغه نثر دی چه په محاورو اوخبرو اترو کښی معمول وي ، اودافهام اوتفهیم‌دپاره استعمالیږي . خطابه دهغو فصیحو اومؤثرو عباراتو څخه عبارت دي؛ چه یو بلیغ سړی ئی دیولوی مقصد دپاره په مجالسو کښی وائی . ( کتابت) هغه نثر دی چه په رسالو ، کتابونو اوپاڼو کښی لیکل شوی‌وی. دمحادثوی نثر غرض، افهام تفهیم ، اوداحتیاجاتورفع کول دي- خطابی نثر دسیاسی، مذهبی، اونور ومقاصدو دپاره ویل کیږي ! تحریري نثردخط ، کتابت ، اداري، تجارتی لیکونو ،علمی رسالو او کتابو دپاره استعمالیږي . اروپایان نثر لاندې اقساموته ویشی .

۱ :- قصص ۲ :- تاریخ ۳ :- فصاحت ٤ .- رسایل

لفظي اقسام : عرب نثر دو وقسموته ویشی - یو هاغه دی چه په قافیی پوري مقیدنه وی یعنی جملې ئې مقفی نه وی ، دې قسم ته « مرسل» وائي- اوبل هاغه دی چه دقافیی التزام پکښی وی دې قسم ته «مسجع» وائي. مگر مکمل‌نثر اول قسم ته ویل کیږي . دویم‌قسم‌چه دقافیی یاد وزن التزام پکښی وی مکمل نثر نه دی . ځینو کسانو نثر در یو اقسا مو ته ویشلی دی ۱ - مرجز ۲- مقفی۳- عاري- مرجزهغه دی‌چه موزون وی ، مگر قافیه نه لري . مقفی هغه دی‌چه عبارات ئی موزون نه وی مگر دجملو په آخر کښی‌ئی دقافیو مراعات شوی وی . او«عاری» هغه دی چه نه وزن لري اونه قافیه یعنی دقافیی او دو زن دقید د واړونه عاری وی . دی قسم ته مکمل نثر ویلی‌شي- دادا او عباراتو په لحاظ هم نثر دوه ډوله دی . یوهغه دی چه سلیس اوساده وی . ازمطلب تري په آسانتیاسره فهمیدی شی اویوهغه دی چه مشکل اوپیچیده وی ، اوبه آسانی سره تري مفهوم نشی اخستی - داوو دادب عمومی اصطلاحات او تقسیمات - اوس غواړو چه دپښتو دنثر په خواوشا کښی چه ځمونږ اصلی مقصد بلل کیږي بحث وکړو -

## ( دپښتو دنثر اقسام )

ښاغلی لوستونکی به خیال کوی چه دادنثر تاریخ یاتذکره لیکی ، مگر داسی نه ده که څه هم ځمونږ دابحث دنثرتذکري اوتاریخ ته ورته دی ، اماخبره داده چه دیوې ژبې دنثر دتذکرې دلیکلو دپاره مکمل اوپوره معلومات پکاردی اودپښتو دنثر متعلق لاتر اوسه یو ړې پوره او کافی معلومات میدان ته نه دی راوتی ، اونه پکښی پوره څیړنه اوتحقیق شوی دی . هرڅه چه دی ، تر اوسه پوري په ابتدائی صورت دی .

هو! کیدی‌شی چه ځمونږدامقاله دآینده دپاره که څوک دنثرتذکره لیکی؛ مفیده واقع شی اودنثر دتذکري په یوه حصه کښی تري کاروا‌خستل شی . مونږ اوس پدې مقاله کښی صرف

دومره غواړوچه د پښتو د نثر اقسام، د معنی او موضوعاتو په لحاظ وښيو، یا په بل عبارت داڅرګنده کړو چه د پښتو په نثر کښی څه قسم موضوعات تر اوسه پوری ویلی شوی او پیدا کیږی ؟ او تر کمی اندازې د پښتو نثر پوره او کامل ، او یا ناقص او نیمګړی دی ؟ او د پښتو د نثر لمن د موضوعاتو په لحاظ څومره وسیعه او ارته ده ؟ په دې ډول غواړو چه د پښتو د نثر لفظی تحول ته هم اشاره وکړو او هغه فرق او تغیر چه د بیلو بیلو دورو په لحاظ د پښتو په نثر کښی لیدل کیږی ؛ د خصایصو ، مطالبو او حسن او قبح ، په لحاظ بیان کړو ، که خدای وکړی چه په دې واسطه د پښتو په نثر څه نه څه رڼا واچولی شو .

دلته یوه خبره کول پکار ده ، هغه دا ده چه د نثر اولی اقسام که څه هم درې یعنی ( محادثه خطابه ، کتابة ) ګڼل کیږی . مګر د پښتو په نثر کښی مونږ صرف د دریم قسم یعنی « تحریری نثر » څخه بحث کوو ـ ولی ؟ چه د دوو اولو قسمو یعنی محادثوی ، او خطابی نثر نمونې مونږ سره نشته او نه له پخوا څخه د هغه وخت د خبرواترو او خطابو ، څه نښه ، نښانه پاتی ده ـ

البته څه لږ ډېر چه موجود دی ، او څه مونږ لاس ته رارسېدلی دی هغه « تحریری نثر » یا په اروپائی اصطلاح ( رسایل ) دی ـ دا زه نه وایم چه پښتو محادثوی او خطابی نثر نه لری ـ ځکه چه دا دواړه برخې د هرې ژبی د پاره ضرور او لازم دی . مګر خبره دا ده چه د پښتو دغه قسم نثرونه ، هو بهو د پخوا وخت څخه د کاغذ په پاڼو کښی نه دی لیکل شوی . بلکه ، لکه د خبر و بشان په هوا کښی محوه شوی او غائب شوی دی . ژبه چه د کم وخت نه پیدا شوی وی ؛ له هغه وخت څخه محادثوی نثر ورسره وی .

دارنګ ( خطابی نثر ) هم د هرې ژبی یوه لازمی حصه او برخه ده ـ ولی چه هره ژبه د سیاسی ، مذهبی ، دینی حیات دورې طی کوی او ددې مطالبو او مقاصدو د پاره چه کم نثر استعمالیږی هغه ته خطابی نثر وائی هر کله چه دینی مراعظو ، او مذهبی خطابو د اسلام د بختور دین په اثر په مسلمانانو کښی زیات تعمیم او رواج موندلی دی . نو خامخا دغه قسم مذهبی خطابی په پښتو کښی هم شاید زیاتی وی مګر لکه چه مخکښی مو وویل ، د دغه دواړو قسمو پخوانۍ نمونې هر کله چه په لاس نشته ، نو ځکه یواځی د دریم قسم څخه بحث کیږی . اوس د پښتو تحریری نثر یا «رسایل» د موضوع او معنی په لحاظ راتلونکو برخوته ویشو :

## ( مذهبی )

دا ثابته ده چه د قومونو او ملتونو د احساساتو ، افکارو ، عقایدو مظهر ، او آینه د هغو ادبیات دی . څرنګه چه د ملتونو ، افکار ، احساسات ، عادات ، رسوم سره جلا جلا او مخالف وی ، دارنګ د هغوی ژبه ، ادبیات هم سره متفاوت وی او تو پیر او فرق پکښی موجود وی ـ د افکارو او احساساتو د اختلاف مهم عوامل

دادرې دي( محیط نژاد، زمانه) محیط دوه قسمه دي یو طبیعي محیط او بل معنوي محیط . طبعي محیط د اقلیم آب وهوا، جغرافیوي حالاتو څخه عبارت دي . دطبعي محیط تاثیر دیوقوم په ادبیاتو کښې ښکاره اوثابت دي ، اومعنوي محیط ددیني ، سیاسي، علمي ، افکارو دنشراود تاریخي حوادثو او دهغو دنتایجو څخه عبارت دي . داټول افکاریا داحوادث چه مونږ ورته معنوي محیط وایو هم په ادبیاتو کښې پوره مؤثر ګڼل کیږي . داوجه ده چه دشرقي ژبو په ادبیاتو کښې دمذهبي افکار و رنګ زیات ، اوډېر دي . او کم آثار چه داسلام د منورد ین د خپرېدونه ور و ستـه لیکل شوي دي ؛ هغه ټول ددغه رنګ نه خالي ندي . دپښتو ژبې زیات کتابونه چه څمونږ ګوتوله راغلي دي ؛ هغه داسلام منور عصر ته راجع دي ، یعنې ټول په هغه وخت کښې لیکل شوي دي ؛ چه په هغه وخت کښې داسلام رڼا په هرځای کښې خپره شوې وه ؛ اوداسلام مذهبي افکارو عمومیت موندلی و . ددغه وخت په ټولو کتابونو کښې دیني اومذهبي رنګ موجود دي ، اوټول د مذهبي احساس په اثر کښې لیکل شوي دي .

هر کله چه عربي دمسلمانانو مذهبي اودیني ژبه وه ، نو څمونږ په اکثرومذهبي کتابونو کښې عربي الفاظ هم زیات داخل شوي دي ، اوټول کتابونه دمذهبي اصطلاحاتونه ډک دي لکه دا : (قطب ، قدوةالواصلین، مراقبه، مشاهده ، کشف الهام ، معجزه ، کرامات ، ملکوت ، جبروت سالك ، عارف ، شریعت ، طریقت، مراقد، وحدانیت ، واجب الوجود، حقیقت) دغسې نور مشکل اوعربي الفاظ چه هم لیدلی شي دهغه وخت دمذهبي نفوذ اوغلبې اثر دي ـ په دې سلسله یعنې مذهبي اودیني لړ کښې تذکرة الاولیا ، خیر البیان، مخزن الاسلام ، نافع المسلمین، فوایدالشریعه ، داسې نور اونور کتابونه موجود دي .

لاندې غواړو چه دهر یو متعلق څه نه څه معلومات اودهر یو نمونه بیان کړو :

۱ ـ تذکرة الاولیا :ـ دا کتاب سلیمان ماکو په ۶۱۲ ه کښې لیکلی دي . سلیمان ماکو دبارك خان ځوی په قام صابزي ، اودقندهار په ارغسان کښې اوسیده . دا کتاب دپښتو د نثر لمړی اثر دي چه څمونږ ګوتوله راغلی دي . ددې کتاب یو څو زړې دسرپانې (۱) د (۱۳۱۹) په سالنامه کښې نشر شوې دي . ددې کتاب په موندلو دپښتو د نثر تاریخ اوه نیم سوه کالو ته رسیږي او ددې نه پخوا د یو بل اثر په موندلو لانه یو موفق شوي . په دې کتاب کښې دبزرګانو اوولیانو حالات لیکل شوي دي. دا اثر که څه هم دتذکرې ، رنګ لري . مګر هر کله چه دمذهبي احساس په اثر کښې لیکل شوي دي اودولیانو ، بزرګانو دمناقبو ، اوحالاتو بیان دي نوځکه ورته دموضوع په لحاظ مذهبي وایو .

---

(۱) دا اثر ښاغلي حبیبي موندلی دي اود ۱۳۱۹ په سالنامه کښې ئې ددغه کتاب یو څو پانې زنګو ګرافي کړي دي .

نمونه : (وایم حمدوسپاس دلوی خاوند ، اودرود پر محمدمصطفی صلی الله علیه و سلام چه دی بادار د کونینو اورحمت دثقلینو ـ لوی لوی رحمتونه دې وی د هغه استاذی په آل اویارانو چه دوالړه جهانه پردوی دی روښان .

اما بعد زه غریب خاوری سلیمان ځوی دبارك خان ما کو صابزی چه په ویاله دارغسان اوسیږم اوپه دې مز کو پائیږم . په سن دولس شپیږ سوه دهجری تللی وم ، اودپښتنخوا په راغو او کلو گرځیدم ، اومراقد داولیا اوواصلینو می پلټل ؛ او په هر لوری می کاملان موندل ؛ اوددوی په خدمت خاکپای وم ؛ اوهر کله په سلام ورته ولاړ .

چه له دې سفره په کور کښی کښېښستم ، تنها کې می وچاودلې دپښو ، بیا پاڅېدولم ، اوله ښښتنه می مرستون شوم چه احوال دهغو کاملانو وکاږم ، اودوی چه هغه وېناوی پاتی کړی دی اوپښتانه ئی لولی اوس . )

تبصره : د سلیمان ماکو نثر دمعنی پلحاظ په مذهبی اودینی حصه کښی شاملیږی . د لفظ پلحاظ هم ځنی مهم خصوصیات لری چه زیاتئی دپروسکال په سالنامه کښی بناغلی « خادم » بیان کړی دی . زه ئی دلته فقط یوڅو خصایص بیانوم :

۱ـ د سلیمان ما کو نثر په پخوانو نثرونو کښی ساده، روان اوغیر مغلق دی .

۲ـ دی اوږدې اوگرانی جملې نه استعمالوی ـ

۳ـ دروښان ، دوریزه پشان مردفی اومقفی جملی هم نه جوړوی .

٤ـ دپښتو خالص لغات زیات استعمالوی ؛ چه هغه په ننني محاوره کښی نشته .

٥ـ دده نثر موزون هم نه دی بلکه دپښتو دهغه وخت یو ښه نثر یعنی « نثرعاری » ورته ویلی شی .

٦ـ لغوی اقتدائی زیات دی ، اودپښتو په لغاتو پوره احاطه لری .

صرف دترکیب اودجملو دتقدیم اوتاخیر په لحاظ ، پکښی څه نواقص شته هغه دادی چه د عربی عباراتو او جملو اثر پکښی زیات لیدل کیږی .

او عبارات او جملې ئی د پښتو د موجوده قالب نه ډیر لیری والی لری په دی سبك کښی دی د چا مقلدنه گڼو ـ ولی چه دده ترمخه ، بل څوك نشته اونه کم بل نثر مونږ ته معلوم دی نو په دې لحاظ ده ته د خپل سبك مؤسس وایو .

۲ـ خیر البیان : دویم اثر چه دتذکرة الاولیانه وروسته، دمذهبی اودینی احساس په اثر کښی لیکل شوی دی ؛ خیر البیان دی . خیر البیان دمشهور « پیر روښان » اثر دی . پیر روښان دعبدالله ځوی، دوزیرستان د (کانیی گرم) اودیو پوره معقولی او فلسفی دماغ څښتن و ـ خیر البیان دده تبلیغی کتاب دی . یعنی په دې کتاب کښی ئی دمذهب اودین ته رنگ کښی خپل افکار او عقاید ،

ښکاره کړې دی. دا کتاب په څلورو ژبو عربي، اردو، فارسي، پښتو لیکل شوی دی «پیر روښان» د پښتو یو زبردست مبلغ، معقول، فلسفي سړی دی ـ دی بایزید نومیده، او په میان روښان، پیر روښان حتی «پیر تاریك» سره مشهور و ـ پیر روښان ډېر معتقدین او پیروان لرل او دی ئې پیرا و مرشد و ـ اخون درویزه ددہ معاصر دی. ددې دواړو لویو شخصیتونو همېشه د پاره په مذهبي او دیني مسایلو کښې جګړې، بحث مباحثې شوې دی. او په هم دې اثر کښې دوی خپل تبلیغي کتابونه لیکلي دی. وائي چه پیر روښان دیو خاص مذهب او عقیدې خاوند و، دی په (۹۴۹) (۱) هجري کښې قوی شوی دی. لسم قرن دده د بروز او عروج عصر شمېرل کېږي درویزه وائي چه پیر روښان یو عالم او فیلسوف سړی و، د مذاهبو فلسفي ئې کتلي وې، او یو نوی مسلك ئې راویستلی و ـ

د خیر البیان قلمي نسخي ځینو مستشر قینو لکه، مسترراورتي، سر ډ مینسن راس، مار ګن ستېرن لیدلې دی. مګر نسخې ئې ډېرې کمې پیدا کېږي ـ صرف یوه قلمي نسخه ئې په انډیا آفس یا برطانوي موزیم کښې شته مار ګن ستېرن دهند دزړو آثارو په مجله کښې د دغه کتاب څخه یو څو نمونې نشر کړې دی چه دادی مونږ ئې لاندې رانقل کوو!

نمونه: (ښی ویلی دی رحمت دې وی په ده مر ګ په ورشی وسړی ته نا ګهان ـ نشته په دنیا کښې د سړي تر تله مقام ـ ګوره ددغی زمان آدمیان ـ غواړی دنیا او هر چه پکښې وی مشغول دی ډېر آدمیان ځینی په کرلو یا په بازر ګانیږ، یا په یوند ګلي یا په تور کښې باندې ځینی په نور نور چار مشغول که آدمیان ـ

که څوك اس اسپې لری، کال تېر شی تمام ـ څښتن ئې اختیار لری چه یو دینار دی ور کی دهر حیوان ـ یادې بها کی له دووسوو درمودې پنځه ور کی تمام ـ)

خصایص: څرنګ چه دغه موهم وویل دا نثر د معنی او مفهوم په لحاظ دیني او تبلیغي دی او د لفظ په لحاظ ورته مقفی یا مسجع نثر ویلی شو ـ نو رعبارات بالکل د نثر په شان دی یعنی وزن پکښې نشته مګر د قافیو لحاظ پکښې شوی دی. په دې لحاظ دې قسم ته ځینې خلك نیم مصنوعي شعر وائي اما هر کله چه د شعر دیو جزء یعنې وزن مراعات پکښې نشته او ځکه شعر نه بلل کېږي په دې نثر کښې سلاست او رواني لیدله کېږي ـ نامانوس او مشکل لغات پکښې نه دی استعمال شوی، سره ددې هم هر کله چه فقهي مذهبي، دیني مسایل پکښې بیان شوی دی، نو د عربي ژبې د طریقې، اسلوب، ترکیب له تأثیره خالي نه دی دا قسم نثر د نثر په لحاظ هم مکمل نه بلل کېږي. څرنګ چه مکمل شعر و رته نشي ویلی دارنګ مکمل نثر هم نه دی بلکه ناقص او نیمګړی نثر دی ـ ددې نثر مهم خصوصیت دادی چه جملې ئې اوږدې دی او د تذکرة الاولیا په شان لنډې جملې نه استعمالوي عاطف هم ډېر نه استعمالوي،

(۱) دبستان مذاهب.

اوپه‌معنوی ارتباط اکتفا کوی . ددې‌یوشوجملو څخه‌معلومیږی چه‌په‌دې نثرکښې دقافیې‌تکرار زیات دی . اویوه قافیه‌څو واری تکراریږی .

۳ ـ مخزن الاسلام : یا « مخزن پښتو » دریم کتاب دی ، چه په دینی او مذهبی سلسله کښې داخلیږی . دا کتاب دشرعی‌مسایلو عقایدوتجویداو کلام مجموعه‌ده ، اوددینی مسایلو دتبلیغ او پروپاګند په‌غرض‌لیکل شوی‌دی . اخون‌درویزه دپښتو یوزبردست متشرع عالم ددې کتاب مصنف دی .

دی پښتون عالم دا کتاب د « پیرروښان » دخیرالبیان په مقابل کښې دهغه دمسلك دبندولو دپاره لیکلی‌دې .

اخون درویزه دګدائی ځوی ، اود ( جیون ) د کورنۍ څخه و ، دی د شیخ علی تر میدی « پیربابا » معتقد اومریدو ـ اخون درویزه ننګرهاری ( ۱ ) دی . ځان او خپلې او لادې ته ننګرهاریان وائی . دی د ( ۱۰۰۰ ) کال هجری په‌خواوشا کښې ژوندی و او په ۱۰۴۸ ه کښې وفات شوی دی . قبرئې په پېښور کښې دی . دی وائی ( بنانسته مخزن می و کیښې بر په درو په ګوهارو ) مخزن دده نه وروسته دده ځوی کریمداد ، ټول کړی ، او ترتیب کړی دی اوبیادویم وار مصطفی محمد دکریمداد نمسی په سنه ۱۱۱۲ه کښې ترتیب او راټول کړی دی .

دمخزن په وروستنو مجموعو کښې چه‌پاتې دی ځینې نوراشعار اونثر دده‌اولادې زیات کړی دی . او دده داولادې او دده دکورنۍ اوشاګردانو د کلام نمونې پکښې پیدا کیږی . مګر د معنی اوموضوع ، دارنګ دسبك اولفظ په لحاظ ټولو ددرویزه پیروی کړې ده ، او ټول مخزن په یورنګ اویوطرز معلومیږی . کریمداد ددرویزه ځوی ، عبدالحلیم ، او مصطفی محمد د درویزه نمسی ، ملا اصغر ددرویزه ور ور ، ملا عبدالسلام . عمرخان ، میرخان د درویزه شاګردان ، دې‌ټولوخپل اشعاراود کلام نمونې په مخزن کښې زیاتې کړی دی . او ددرویزه په شان دینی اومذهبی مطالب ئې بیان کړی دی .

مخزن د خیرالبیان په سبك ویلی شوی دی ـ یعنی نیم مصنوعی یانیم عروضی شعر دی دخیرالبیان په شان مخزن ته هم مکمل نثرنشی ویلی بلکه مقفی‌نثرورته ویل کیږی صرف دومره فرق دی چه دمخزن عبارات موزون هم وی ، او دخیرالبیان اکثرعبارات‌اوجملې وزن نه لری . مطلب دا چه د مخزن عبارات زیات موزون دی ، او د خیرالبیان هغه یوائې مقفی دی .

نمونه : ( د هرشیز اصل ثابت دی . ځکه نوم باندې رغیږی ـ هم په عقل را کښېوځی ، هم داعقل وررسیږی ـ د آشیا اصل‌ثابت دی ، اوهام نه دی ـ ته آګاه شه

---

(۱) دا ګفتار د درویزهٔ ننګرهاری دی .

رحمت په مصنف شه هم په والدوننګرهارو چه پښتو دین ئې پښتنو لره بیان کړ
( قلمی مخزن )

چه اوهام ځيزونه نه لري سودونه ـ نه ئې زيان وبله رسيږي ـ خلا ف سوفسطايه کا ـ
دوی وائي دا اوهام دی له صانعه ئې منکر دی ـ په محبت داهل شرع دوی په اور کښ
کښېنولی ـ سکه دا اوردې هم اوهام شي چه په دوی نه لګيږي ـ اهل حق دی ويلي ،
چه بی شك صانع قديم دی ـ پرده ګواه دی دا مختلف چارې دعاقل حجت دغه دی ـ
چه هيڅ کالي بی استاده نه رغيږي ـ دا اشيا واړه حادث دی له نابوده پيداشوې ـ
هرچه وشويا به شينه ـ او دحق ذات صفات قديم دی ـ کل آشيا له قدرته پيدا کيږي ـ
اسباب دعلم درې دی ـ اول حواس دې سلامت وی له نقصانه ـ هغه ځيز چه په حواس
تعلق لرينه ـ په شکل ، په اوزېدل په بو يول هم په نيول يا په ليده به ور پو هيږي ـ
دويم اسباب خبر صادق دی ـ دا خبر دی په دوه رنګه ـ يو خبر متواتر دی ـ هر چه
ډېر وخلقو ويلي پې درپي وی ـ څه تهمت دکذابي ورته نکيږي ـ په دغه خبر به علم
ضروری دتا حاصل شي ـ لکه ډېر خلك له تېر وباد شاهانو کا خبر ی ـ يا لکه مکه
اومدينه وی په جهان کښ دوی ښرګنده په ملکونه ـ

خصوصيات : دمخزن په نثر کښ، عربي الفاظ ، زيات دی ، د جملو په آخر کښ دقافيو مراعات
کوی، که څه هم جمله ډېره اوزده شي ـ ځيني جملي او عبارات ئې موزون ، اولکه د نظم دوزن
په قالب هم برابر وی، اما تر آخره پورې پکښ بيا دغه شي نه ليدل کيږي . ګوندې شايد نظم
ورته ويلي شوی وی. بله خبره داده چه يوه جمله ئې ډېره لنډه وی او بله ډېره اوږده وی ،
چه په دې لحاظ هم دنظم په قالب کښ نشي راتلی ـ غرض داچه دانثر دپښتو په مقفی نثر کښ
داخليږي ـ اونه ورته پوره نثر اونه ورته پوره نظم ويلي شي ـ دانثر تر يوې اندازې آسان دی
ځکه چه دادعامو خلکو دپوهولو په غرض ليکل شوی دی . عبارات اوترا کيب ئې آسان او عام
فهم دی البته ځيني عرفاني او تصوفي کلمات پکښ زيات مستعمل دی . مخففات زيات استعما لوی .
لکه چه د ( دغه ، خپل سر ، يوله بله ) په ځای ( غه خپسر ، و بله ، ځبله ) ليکی ـ او مففنات
هم د تلفظ له مخه ليکی ـ

٤ فوايد الشريعته : څلورم کتاب چه په دې سلسله کښ دا خليږي فوايد الشر يعته د ی :
دا کتاب اخوند قاسم نامی په (٩٦٧هـ) کښ ليکلی دی . اخوند قاسم د شينو اروديا پين و ،
او دا کبر مغولی په زمانه کښ اوسيده (١) په دې کتاب کښې شرعی مسايل بيان شوی د ی
او يو مذهبی اوديني کتاب دی دفوايدالشريعته ددیباچې نه معلوميږي چه اخون قاسم ، دا خوند
درويزه له پيروانو اواخلاصمندانو نه و ـ اوبه يوسف زو کښ اوسيده ددې کتاب سبك د مخزن
سبك ته نږدې دی . مطالب ئې هم دمخزن پشان ټول ديني او مذهبی دی . مطلب داچه د معنی

(١) دراورټی دپښتو ګرامر مقدمه .

لفظ ، سبك او اسلوب ټولو په لحاظ د مخزن په لیارروان دی او دمقفی او مسجع نثر اطلاق پری کیږی

نمونه : ( په انیس الواعظین کښې هسی وائی ، یوو یشت حق د ښځتن د ی په عورتی ـ اول حق ئی دادی چه دده حکم دې منی ؛ بهانه دې پکښې نه کو ی ـ که بلنه ئی دده قبوله نکړه ، لکه مار له پوسته ووځی داسی داله عباد ته به ووځینه ـ دوم حق د ښځتن دادی چه خپل ځان دې وښځتن ته دا په ښه زینت لر ینه ـ دریم حق د ښځتن دادی چه بی اذنه دده مال به نه خر څوینه ـ چه سروردی فرما یلی چه ثواب ئی د ښځتن شی دا گناه پری وکښینه ـ څلورم حق ئی د ا دی چه بی اذ نه د ښځتن دی داروزه نفل نه لر ینه ، چه دا بی له او زی ، تندی نور به هیڅ نه حا صلو ینه پنځم حق د ښځتن دادی چه بی اذنه د ښځتن دې داله کوره نه وځینه ، که داوو ته بی اذنه فرښتی به پری لعنت کا تر هغه پورې چه په بیر ته داو کو ر ته را شینه ـ شپږم حق د ښځتن داد ی چه ښځتن ئی بر غضب شی عور تینه دې سخت جو اب نه ور کوینه ـ اتم حق د ښځتن دادی چه ښځتن دې له سواله هم له هسی ر نګه کاره چه دی پکښې سپك کیږی البته منع کوینه )

تبصره : د ا نثر په آخر کښې مقفی او مسجع ر اځی ـ او ز د ې جملی پکښې ا ستعما لیږ ی دا نثر هم لکه د خیرالبیان او د مخزن د نثر پشان پور ه او مکمل نثر نه بلل کیږ ی په بل . عبارت ( نثر عاری ) ورته نشی ویلی . دا نثر ساده ، روان او عام فهم دی . مشکل عبارات نا آشنا لغات او سختی جملې پکښې نه لیدل کیږی په ساده ژ به روان دی . د دې نثر لو ی خصوصیت دادی چه عربی الفاظ پکښې ز یات نه دی استعما ل شوی . کوشش شو ی د ی چه پښتو الفاظ استعمال شی . په هر صورت دا نثر د هغه وخت په نثر کښې ښه نثر ګڼل کیږ ی .

## ٥ ـ نافع المسلمین :

دا کتاب هم یو مذهبی او دینی کتاب دی . د شرعی او اخلاقی مسایلو مجمو عه ده په سر کښې ئی دایمان بحث دی . دشاه حسین هوتك په زمانه کښې لیکل شوی دی . مصنف ئی نور محمد نومیږی . دی هم داخون درویزه د مکتب یو شا گرد ښکاری . دنثر د تحریر او نګارش طریقه ئی د مخزن پشان ده ـ مطالب ئی هم د مخزن پشان دینی دی . نثر ئی مقفی ا و مسجع دی . بلکه لا څه قدر وزن ، او شعرته نزد یوالی هم پکښې لیدل کیږی په دې اعتبار دې نثر ته نیم مصنوعی شعر ویلی شی داسی معلو میږی چه دا نور محمد داخون در ویزه نمسی د کر یمداد ځوی او د مصطفی محمد (١) پلاردی . ده په دې خپل کتاب کښې د کر یمداد د نثر

(١) مصطفی محمد بن میان نور محمد بن کر یمداد بن اخون درویزه ( مخزن )

او کلام څخه هم څه برخی راوړي دي دا کتاب د مخزن نه وروسته ليکل شوی دی . او د هغه سره نږدی ارتباط لری .

نمونه : ( زده کړه ای مومنه مسلمانه ، اول دا کلمه شهادة وايه، پرې باور کړه ځما جانه - دويم نمونځ او دريم ئې غه زکواة دی. څلورم ئې روزه او پنځم حج دی. که دلا رمونده امان-ته زده کړه ايمان دادی ای مومنه ( لا اله الا الله محمد الرسول الله ) وايه گويان - هم باورئي په معنی کړه غه معنی گوره چه داده : چه خدای يودی بی شريکه دا خبره ده روښان - محمد رسول د خدای دی فرستاد و هر چاته هم باور کړه دی رسول دی و هر چاته - که پيری دی که انسان - هم ارکان دايمان زده کړه پرې باور کړه هغه دوه دی ای مسلمه ځما جان - اول اقرار کول په ژبه چه محمد له خدای دی ، راوړی . دويم هغه واړه قبول کړه پرې باور کړه ای جان - هم باورته په زړه کړنه ، هم يقين کړه باندې جزم چه قبول واړه احکام کړې هم شرطونه دايمان ته به شپنه په امان - که شرطونه دو جوب ددې ايمان دی يا ايمان مفصل دی يا مجمل دی دا خبره ده عيان - که فرايض د ايمان دينه يا واجب دی يا ادب يا مستحب دينه، ای ځوان - هغه واړه بيان کړی اخون درويزه دی په مخزن کښی بيان نشو په دا کتاب کښی دا کتاب کوتاه له مان - اخون درويزه ستن د ددين په افغانان کښی ، د چراغ پشان ئې روښان دين که په دا افغانی لسان - نور محمد کوتاه بيان په پښتو وکړ-ډېر به خوښ په دا بيان شي زيات افغان )

خصايص : په دې نثر کښی دوزن التزام نشته ؛ ځنی جملی موزونی ، او ځينی بی وزنه را ځی البته د قافی التزام پکښی شته په دی لحاظ مقفی او مسجع نثر بلل کيږی .

دا نثر دا خوند درويزه مکتب ته نږدی دی ، او د خير البيان سبك پکښی غالب دی . د قافی تکرار پکښی زيات ليدل کيږی . که بله قافيه پيدا نشی صرف د مقفی کولو د پاره ځکښی قافيه بيا تکرار وی . وړې ، او زړې دواړه ډوله جملې استعمال وی او دهغه وخت يو متوسط نثر دی .

## ٦ - تفسير بدر منير :

په مذهبی او دينی سلسله کښی يو بل کتاب چه ځمونږ گوتوله راغلی دی تفسير بدر منير دی دا تفسير دوست محمد خټك ، په سنه ١٢٧٥ ھ کښی ليکلی دی دوست محمد د خو شحال خټك د کورنی او اولادې وروستی سړی دی - دی هم په پښتو کښی لکه د خپلو نيکونو غونډې ښه تاليفات او مهم آثار لری ، چه زيات ئې په نظم دی . د ( ١٢٩٠ ھ ) سن پورې ئې ژوندون ثابت دی ځکه چه په دې سن کښی ئې بحر العلوم نومی کتاب ليکلی دی .

نمونه : (په تفسیر کشاف کښې راوړی دی چه یو بادشاه ووزیر ته وویل چه د دې
آیات شریف ترجمه راته وکړه «حق تعالی وائی هره ورځ زه په یوشان کښې نه یم »
نوردانوی شان له حق تعالی سره نشان دمخلوقیت قبلوی او خالقیت او مخلوقیت هیڅ مناسبت نه لري
او په دې سره اعتقاد کفر راولی٠ وزیر ورته عرض وکړ ، چه درې ورځې موده را له
را کړه- پس وزیر پدادرې ورځی مده هیڅ فایده وموصول ته ونه رسوله - نوردریمه ورځ خفه
او پریشانه او ناتوانه اوسرگردانه گرځیده - یو خانه زاده ددهٔ . هغه عرض وکړ چه
ای صاحب! ولی داسی دلگیر اوملال ئې ؟ ده ورته وویل چه ملالت می په داخبره سره دی
چه بادشاه ددې آیات شریف دمعنی پوښتنه وکړه - مادرې ورځی مهلت غوښتی و ،
اوس ئې له معنی څخه عاجز راغلم - ده ورته وویل په فضل سره دحق تعالی داجواب
به زه ورلره ورکړم وزیر ډېر خوشحاله شودی ئې په حضور دبادشاه راووست ویل
بادشاه ستادسوال مقصد له دی ځوانه څخه راغلی دی بادشاه ورته وویل وایه معنی
ددې آیة شریف ده ورته وویل چه بادشاه عرضداشت دبنده وتاته دادی چه ته په
اصل کښې سوال گرئې دسوال کننده داځای نه دی لکه چه ستا دی . ته ځما په
ځای ودرېږه تخت وماته راپرېږده چه زه پر کښېنم . نوربه تاته ددې خبرې ځواب
درکړم . بادشاه عاشق ددې جواب ودی ئې پرتخت کښېناوه . بادشاه دده پرځای
ودریده ، ده ورته وویل چه بادشاه په علم قدیم کښې دحق تعالی داراغلی ووچه زه
به ستاپرتخت کښېنم . ته به ځماپرځای ودرېږې اوس هغه دلته په ظهورسره راغی .
بادشاه تحسین دده دقول وکړ ، آفرین ئې پرووایه ،)

تبصره : د موضوع اومعنی په لحاظ دانثر دپخوانو په شان دی . یعنی مطالب ئې دینی دی
امادلفظ په لحاظ دپخوانونثرونوسره فرق لری - ځکه چه دانثر د۱۳ پېړۍ نثر دی او په دومره
موده کښې خوخامخا په سبك اوطرز کښې څه نه څه فرق پېښېږی په دی وجه دانثر هم داخون
درویزه ، خیرالبیان دطرزاوسبك څخه جلا ، اومخالف دی . دلته لږ غوندې نثر اصلاح شوی ،
اوحقیقی مفهوم ته نژدې شوی دی مطلب داچه دپخوانونثرونوغوندې قافیه بندی پکښې نه لیدل
کیږی بلکه دقافیې اودوزن څخه یوعاری نثر دی - عبارات ئې ساده اوروان دی. ډېرنا آشنا
لغات نه استعمالوی مگر سره ددې هم دځینوعباراتومطلب ښه واضح نه وی. اوځینی نواقص پکښې
موجوددی . دجملوپه ترکیب کښې دعربی او دبلی ژبی اثر لیدل کیږی - جملې ، ترا کیب ،
عبارات لادپښتوپه خالص قالب کښې نه دی لوېدلې - نو په دې لحاظ دا نثر هم نا مکمل
اوداصلاح قابل گڼل کیږی .

## ۷ـ تفسیر یسیر :

دپښتودمذهبی اودینی نثر په سلسله کښی تفسیر یسیر هم شامل دی . تفسیر یسیر مرا د علی صاحبزاده ، په سنه ۱۲۸۲ ه سن کښی لیکلی دی گویادا کتاب هم د۱۳قرن اثردی. مراد علی صاحبزاده دجلال آباد د« کامی » اودیوې علمی کورنۍ عالم سړی و ، دعربی علومو پوره ملاو ، په عربی فارسی ، پښتو کښی مهم تالیفات لری اودپښتو په نظم ئی هم زیات آثارلیکلی دی . دپښتو په نثر کښی ئی مشهوراثر «تفسیر یسیر »دی ، دتفسیر یسیر نثر په سبك ، نگارش کښی د ( بدرمنیر ) نثرته نږدې دی . څرنگک چه دادواړه آثارتقریباً په یوه عصراونږدې وختونو کښی لیکل شوی دی ؛ نوپه اسلوب ، اوطرزتحریر کښی ئی هم څه زیات فرق نه لیدل کیږی ، دتفسیر یسیر نثرته هم مرسل یاعاری نثرویلی شو ، ولی چه دقافیی یادوزن قید پکښی نشته ، دانثر دسبك اواسلوب په لحاظ ددرویزه دسبك نه بالکل اوښتی دی اوپه دی لحاظ ددویم دوریعنی دخوشحال ، قادر ، افضل خان ختك دسبك سره نږدیوالی لری .

نمونه : ( روایت دی چه یو بادشاه دتمام رویزمین چه نوم ئی نمرود بن کنعان و اوپایتخت ئی شهردبابل و یوه شپه ئی په خوب کښی ولید چه دبابل له ځنگه یوستوری راوخوت اورنړادشغلې دهغه رنړادنمراودسپوږمۍ بیخی ورکه کړه ـ نوله ډیره هیبته راویښ شه ، اودخپل ملك کاهنان اوحکیمان ئی راجمع کړل دپاره دتعبیرـاودوی ورته وویل چه په دې کال کښی به یوهلك پیداشی په بابل کښی چه ستابادشاهی به برهمه کا . اوتراوسه لادپلارپه پښت کښی دی . نوحکم ئی وکړ چه د بابل نارینه او ښځی سره بیلی کړی ، اوخوکیداران ئی پری ودرول . اوآزرچه مقرب د پادشاه و ، له خوکیدارانوپټ چرته له خپلی ښځی سره یوځای شه ، اوداحامله شوه ، او صبا له کاهنانو نمروته ووې چه نن شپه هغه هلك له پلاره مورته لاړ نودی په غضب شه اوپه امیندواروښځوئی سړی کښېنول چه هلکان ترې وژنی او جینکی پرېږدی )

تبصره : په دې سلسله کښی نور هم ډیر آثار او کتابونه موجوددی اما دنورو نمونی څمو نږ لاس ته رانغلې ، نوپه دغه قدرمو اکتفاوکړه . اوبل دمقالې اختصارته موهموکتل ـ

داثابته ده ؛ چه مذهبی اودینی نفوذ په ژبه اوادب کښی له هرڅه نه زیات اوډیروی په پښتو ژبه کښی هم دغه نفوذ اوتاثیر زیات لیدلی شی ، اوتراوسه پورې چه دپښتوزیات آثاراو تالیفات موجوددی ؛ هغه ټول دغې برخې ته راجع دی . په تېره دپښتودنظم زیاته برخه خو دغسی دینی ، مذهبی ، عقیدوی . افکاراومسایلونیولې ده اونسبت تاریخی ؛ قصصی اونوروموضوعاتوته مذهبی اودینی موضوعات په پښتو کښی زیات رانغوتی دی .

(۱) وائي چه خوشحال خان هدایه له عربي څخه په پښتو ترجمه کړې ده اودديني متفرقو مضامينو يو بل کوچنی کتاب ئي هم دراود . مگر متاسفانه چه اوس ديوه درك نشته دپښتو دمذهبي نثر په سلسله کښې دشمس الدين کاکړ « سراج الموتی » نومي يو کتاب هم شته دارنگ په وروستو وختونو کښې نورهم ډېر فقهي اوديني کتابونه لکه (كنز، مختصر، ضابطه، ميراث، اونوراونور) خلکو په پښتو ترجمه کړي دي چه دهغو ټولو بيان کافي وخت اواوږد بحث غواړي .

## تاريخي

داخرگنده ده ، چه ژبه هميشه د پاره د حکومتونو په سيوري کښې پالل کيږي . څو پورې چه ديوې ژبې سره دحکومت دمرستې لاس نه وي هغې پورې هغه مخکښې نشي تللی په تېره په تاريخي او تعليمي برخو کښې خو دحکومت توجه نه زيات ضرورت دی . مذهبي اوديني آثار د شخصي عقيدو پواسطه هم ډېر پېدي ، اوميدان نه راتلی شي . مگر تاريخي او تعليمي آثار د حکومتونو اوپاچهانو دتشويق ، زور ، کومك نه په غير تعميم نشي موندی .

ژبې دحکومتونو پواسطه رسمي کيږي اوعموميت مومي . فارسي په غزنوي دلبار کښې دې حدته رارسېدلې ده - اردو دهند دمغلو په وخت کښې پالل شوې اوروزل شوې ده ، صرف يوه پښتو ده چه په يو خارق العاده صورت ئې دنورو ژبو په مينځ کښې ځان ټينگ کړی اوساتلی دی . اوسره ددې چه دپخوانو حکومتونو له خوا ورته زياته توجه نه ده شوې ، بيائي هم په هر قسمت کښې ډېر آثار پيدا کړي دي ، اوځه نه څه ذخيره پکښې موجوده ده . په نثر کښې مهم قسمت تاريخي برخه ده دپښتو په دې برخه کښې زيات آثار ليکل شوي دي . مگر متاسفانه چه ددغه آثارو زياته برخه د زمانې دلاسه ورکه شوې اوبرباده شوې ده ، اومونږ ته ئې بې له تشو نومو څخه بل څه نه دي رارسيدلي . دغسې تاريخي کتابونه چه مونږ ته ئې تش نومونه رارسيدلي دي دادي :

۱- لمړی تاريخ چه په پښتو کښې ليکل شوی دی . د « شيخ ملي » دفتر دی شيخ ملي د پښتون قوم يو سردار اومشرؤ ، وائي چه (۲) په (۸۱۰ هـ) کښې پښتانه دشيخ ملي اوشيخ احمد په قيادت کښې دننگرهار څخه پېښور ته تللي دي . دلته ئې دنورو قومونو سره جنگونه کړي دي او دفتوحاتو سر ئې سوات ته رسيدلی دی - ده دخپلو فتوحاتو تاريخ په خپله ليکلی دی ، اودملکونو دويش ذکر ئې پکښې هم کړی دی . (مارگن سټيرن) ليکي (چه دراورټي له ايکنو څخه معلومېږي چه شيخ ملي د پښتنو د طوائفو اوخپلو فتوحاتو تاريخ په ۱۴۱۷ هـ يعني (۵۲۴) کاله پخوا ليکلی دی .

(۱) راورټي

(۲) تاريخ مرصع .

اوداکتاب ده‌لیدلی‌دی) اخون‌درویزه، تاریخ‌مرصع، اونورمورخین هم ددې کتاب ذکر کوی .
مگر اوس بیخی ورك دی اوهیچیرته‌ئې پته نشته .

۲ـ بلدخان کجورانبې زی کتاب‌دی. « خان کجو » هم‌دپښتنودقبایلوسرداروؤ، اودشیخ‌ملی‌نه
وروسته د قام په سرداری تمام کل شوی‌ؤ . ده هم دخپل‌قام تاریخ لیکلی‌دی . (راورتی) ددې
کتاب نوم اخستی دی . وائی چه‌دا کتاب خان‌کجو رانبې زی په۱٤۹٤ع یعنی (٤٤۷) کاله
پخوا لیکلی‌دی . ددې کتاب متعلق څه‌نور معلومات پلاس نشته .

۳ـ دریم دخوشحال‌خان تاریخ‌دی . راورتی‌لیکی چه‌خوشحال‌خان دپښتنو تاریخ لیکلی دی
مگر فعلاً ډېر نایاب دی . اونه‌پیدا کیږی .

٤ـ تذکرة الملوك : داکتاب دسدوزایانو په‌وخت کښ په‌پښتو لیکل شوی‌دی .
دسدوزایانو دکورنۍ حالات بیانوی . مستر راورتی لیکی : (داکتاب‌ډېر نایاب‌دی صرف
ځما لاس ته‌ئې یو‌ه‌نسخه‌راغلې‌ده . داکتاب‌اته جلده او(٦٤۷) صفحې‌دی. دوه‌برخی‌واقعات ئې
هغه‌دی : چه‌داحمدشاه‌بابا نه وروسته پیښ شوی دی) په هر صورت داکتاب دپښتو یو ډېر مهم
اوقیمتی اثردی مگرمتاسفانه چه مونږئې دلیدلو نه محروم یو اونامعلوم دی . اخون درویزه هم په
مخزن کښ څه‌لږ ډېر تاریخی حالات بیان کړی‌دی مگر دهغه کتاب په‌عام لحاظ یومذهبی کتاب
گڼل کیږی. پرته‌لدې څخه احتمال لری چه‌نور بههم ډېر دپښتوتاریخی کتابونه‌وی چه‌مونږته‌به‌ئې
نوم‌هم‌نه‌وی‌رارسیدلی . کوم تاریخی کتابونه چه‌مونږئې پیدا کیدی شی دادی :

۵ـ تاریخ مرصع : دپښتو یو زبردست تاریخی کتاب‌چه‌زیات شهرت اونوم‌لری تاریخ مرصع
دی . تاریخ مرصع دپښتنو یولوی‌تاریخ‌دی چه‌دختټکو دکورنۍ یوروښان ستوری محمدافضل خان
لیکلی‌دی . داکتاب دمعنی اولفظ دواړو په‌لحاظ دپښتو دتاریخی‌نثر یوخوږ اولوړ کتاب دی
اوپه‌نثر کښ دافضل‌خان تاریخی شاهکار گڼل کیږی . داکتاب هم مکمل نه‌پیدا کیږی صرف
انگریزانوئې یوځوبابونه په « گلشن‌روه » او« کلید افغانی » کښ چاپ کړی دی . افضل خان
داشرف‌خان هجری زوی اودخوشحال‌خان نمسی‌دی. دی‌تر(۱۱۸۳ه) پوری ژوندی‌ؤ . خپل
زیات آثارئې د (۱۱۰۰) نه راپدې خوا لیکلی دی افضل خان دختټکو د کورنۍ یو پیاوړی
ادیب او په تېره په نثر کښ د پوره اقتدار خاوند دی . اگر چه خوشحال
او عبد القادر هم د پښتو دنثر په تحول کښ پوره برخه اخستی ده . مگر افضل خان د ختټکو
د نثر د میدان پهلوان گڼل کیږی . په دی وخت کښ د پښتو نثر ساده او خوږ شوی او د
شعر د رنگ نه راوتلی دی . په دې وخت کښ نثر حقیقی رنگ پیدا کړی دی . د ختټکو
دکورنۍ عصر ته مونږ د پښتو دنثر دویم دوروایو . په دې وخت کښ د پښتو نثر د اخون
درویزه د سبك نه را او ښتی‌دی او یوبل مستقل‌سبك میدان نه راوتی دی . د ختټکو د کورنۍ

په وخت کښې څر نګ چه د پښتو شعر ښه ترقی کړې ده دار نګ د پښتو نثر هم یو پوره تکامل موندلی دی. د معنی او موضوعاتو په لحاظ هم د نثر لمن ډېره ار ته شوې ده . تاریخی قصصی ، داسې نور نور موضوعات او مطالب پکښې داخل شوی دی . او د سبك ا و اسلو ب په لحاظ پکښې هم پوره اصطلاحات شوی دی . په دې کورنۍ کښې خو شحال ، عبد ا لقادر افضل خان ، درې واړه نثر لیکونکی دی . مګر افضل خان پکښې د ز یات حق خاوند د ی . اوس ئې د تاریخ مرصع یوه نمونه وګو رئې :

## راتلل دغوریه خیلو له قندهاره

نمونه : ( نقل کاچه په یوه سبب یاد هزاره وله میرخۍ تنګ شو ل ، یادمغل له بدۍ د قندهار له ملکه متفرقه تیه تیه راروانې وی. په کابل په ننګهارئې مکان و نیو . چه جمعیت ئې وشه ، خانه کوچ پېښاور لره راغله په پېښاور باندې د لا ز اك و و ، مناقشه ئې سره وشوه . د سلطان پورۍ په کلی چه اوس ئې هم عا لم د جنګ ورې بولی جنګ سره وکړ . دلا زاکو شکست بیاموند څه په تیغ مړه شول بعضی د پر عالم د هزار خانۍ نالې غرق کړل ، چه تیزندۍ کندهٔ ئې بولی . د جنګ په وخت یوه پر چه داور را ښکاره شوه ، باران پر سرحد دنالې وشه . ناله راغله ، او که نه خپل قوت داوبو د هغې نالې نشته هسې نقل کاچه هغه زمان باران په هیڅ ځای نه و ، مګر په سرحد دهغې نالې سبحان الله ـ فتح له جانبه دده او مدد له جانبه دده ، و یلی دی حق تعالی ( ومارمیت اذ رمیت ولکن الله رمی ) د لا ز اك له پېښاوره بې پا یه شول ، بیاد یوسف زیو تر سیند پورې شول په لنګر کوټ په سمه په کلپانۍ ئې واړول. یومدت په دا تیر شه ، بیاد یوسف زود دلا زا کو سره میرخۍ شوه یوسف زی په درست خشی وګر ځېده ورسره ئې مل کړ ، نقل د ی له اخون در و یزه چه ددلا زا کو په هغه آوان په میره د لنګر کوټ استو ګه وه ، او یو سف ز و په اشنغروه او په دا سبب چه دلا زا کو د لنګر کوټ ګر د نواحی سره نیو لی و و چه به د یوسف زومال مواشی میرې ته په چرا ګاه ور غلل تاخت و تارا ج به ئې کړ . که څوك به ئې په سود په سوداورغی هم ئې آ زاراوه ـ همیشه به ددلا زا کو دلاسه په تنګ وو . ملك احمد مصلحت وکړ چه بویه رجوع وخشی ته وکړ وا لخ )

خصوصیات : دا نثر د خټکو د کورنۍ او د هغه وخت یعنی د دویم دور غوره نثر دی . مطالب ئې تاریخی دی عبارات ، جملې او ترا کیب ئې ساده او عام فهم د ی . مشکل ا و

نامانوس لغات پکښې نه لیدل کیږي ، او مطلب ترې ښه فهمیدی شي . وړې او لنډې جملې استعمالوی نوځکه د عاطف استعمال هم پکښې کم دی . اگر چه په دی نثر کښې د پښتو د اسلوب رنگ غالب دی مگر سره ددې هم د هغه وخت د طبعي اثر په وجه ځینې عربی ، او فارسی لغات لکه ( مناقشه ، چرا گاه ) پکښې استعمال شوی دی . ځینې ترکیبو نه ئې هم فارسی ترکیبونو ته نږدې دی مضاف له مضاف الیه نه مخکښې استعمالوی ، او داسې نوراو نور لکه : ( باران ، په سرحد د نالې وشه )

## ٦ــ داعثم کوفی تاریخ :

دافضل خان ختک یو بل تاریخی کتاب داعثم کوفی تاریخ دی . چه ده په پښتو ترجمه کړی دی مگر دانه ده ښکاره چه دا ترجمه له اصلي عربی څخه ده او که له فارسی څخه پاڅری هیوزا نگر یزد « کلید افغانی » په مقدمه کښې ددی کتاب ذکر کوی . ددی کتاب نمونه پلاس رانغله! لبته ددی کتاب د نثر سبك او اسلوب به هم د « تاریخ مرصع » پشان وی .

## ٧ــ تاریخ د سلطان محمود غزنوی :

دا تاریخ مولوی احمد (منشی احمد) په (١٢٨٩) ه کښې له « تاریخ فرشتې » نه ترجمه کړی دی منشی احمد د پېښور د « تنگی » دی . د (١٣٠٠ ه) په شا وخوا کښې د پښتو یو زبر دست نثر لیکونکی گڼل کیږي . دی د پښتو په نثر کښې زیات آثار او تالیفات لری . دده عصر ته مونږ د پښتو د نثر دریم دور وایو . په دې دور کښې د پښتو نثر ښه پالل شوی دی ، او ډیر کتابونه پکښې میدان ته راوتی دی . قصصی آثار زیات شوی دی ، فکاهی، ظرافتی موضوعات مینځ ته راغلی دی . په دې دور کښې د پښتو نثر په هره خوا کښې پوره تحول او تطور کړی ، او خوږ اوساده شوی دی . ددې نوی سبك موسس منشی احمد جان دی . ده د پښتو نثر ډیر مقبول کړی ، اورنگین کړی دی ، ددې وخت په نثر کښې دبلی ژبې رنگ او اثر زیات نه لیدل کیږي . که څه هم د منشی احمد ددې لمړنی اثر په نثر کښې پوره تغیر او تحول نه دی شوی ، او د دې اثر سبك د تاریخ مرصع سبك ته قریب اونږدې دی . مگر دده نور آثار چه ددې کتاب څخه وروسته لیکل شوی دی بالکل د پښتو په یو نوی اومستقل سبك دی . نوځکه ده ته مونږ ددې سبك موسس وایو او ددریم دور په ادبی تحول او تطور کښې ده ته د تقدم حق ورکوو .

نمونه : ( جمع کونکو د تاریخو نو په مبارکو قلمونو سره په پاڼو د تصنیفونو خپلو هسې لیکلی دی چه سلطان محمود غزنوی یو باد شاه وچه نیك بختی د دنیا او د دین ئې نصیب شوې وه اودعدل او انصاف شورئې په هر لورخور شوی و . او په کاردغزا کښې ئې نښانونه د اسلام و درولی وو ، او بیخونه دظالمانو ئې و کښلی وو .

چه په جنګ له روان شه تا به ویل چه ګوندی سیلاب دی چه په لوړه اوژوره برابر
بهیږی ـ اوچه په تخت به کښیناست نودسړی به ګمان وشه چه هلو نوردی چه رڼا ئې
په خاص وعام لګیږی . مګر په بعضی کتابونو کښ لیدل شوی دی چه دغه باد شاه
ډیر بخیلو، لیکن نسبت دبخل هغه بادشاه معتبرته له انصافه نه بهر معلو میږی . ځکه
چه دومره ملکونه لاندې کول اوعالمان اوشاعران په مجلس کښ کښېنول بغیر له د نیا
ورکولو اومال بښلو نه برابریږی ـ اوداظاهره خبره ده چه بی له مقررې وظیفی نه
خلور لکه روپۍ به ئې لا یقو لا یقوخلکوته بخښلی ـ اوقسم قسم مهر بانګی به ئې کو لې
اوفایدې به ئې هرچاته رسولې . هان دادوه څیزه که دبادشاه دبدنامۍ سبب وی نو به وی
یوزړه بداوی دفردوسی شاعر سره کول بل په آخر عمر کښ زرله خلقوا خستل )
خصوصیات : داثر په ساده ګی او روانۍ کښ دتاریخ مرصع پشان دی . مشکل اونامأنوس
لغات نه استعمالوی ، مګر دفارسی رنګ پکښ معلو میږی اوبل فرق دادی چه دلته روابط
او حروف عاطفه نسبت تاریخ مرصع ته زیات استعما لیږی اوجملې ئې هم نسبتاً اوږدې دی .

## ۸ ـ تاریخ افغانستان :

دا اثرهم دمنشی احمد جان دی . دسلطان محمود دتاریخ څخه ډیره موده وروسته لیکل
شوی دی . د (میلسون ) انګریزدتاریخ ترجمه ده ـ ددې کتاب څخه دده زبردست اقتدار
معلومیږی . په دې کتاب کښ دترجمی رنګ نشته ـ په ډیره ، ساده روانه سلیسه او خوږه
پښتو لیکل شوی دی . دا کتاب دطبعی یاجغرافیوی تاریخ برخه هم لری، په پښتو کښ دا لمړی
اثردی چه طبعی اوجغرافیوی تاریخ پکښ داخل شوی دی .

## ( دغلزو بادشاهی )

نمونه : (ددې مرادتر سره کېدو په دویمه ورځ میرواعظ(میرویس) دقند هارخلک
راغونډ کړل . اوپوتقریرئې وکړ . هغه ووې چه زه په خپل ایمان وایم چه ځما مطلب
ستاسو آزادول دی . او آزادی یوداسی بی بهاشی دی چه دې دیاره دا سازشونه
اوجنګونه روا وو . ګور ګین خان دایران تورزن او بیمثل سپاهی دمینځه ووت ـ
اوس قند هارته چه ددې طاقتورمغل ئې همیشه په بهادرۍ سره مقابله کړې ده ، د هغو
فوځو نوورستو کول څه ګران نه دی؛ چه داصفهان داجړا ګانو په ( کمان) کښ دی .
آخر هغه خپل تقریر په داسی الفاظو باندې خلاص کړ؛ چه دوطن دیو خواخوږی دخولی سره
مناسب اودآزادوځوانمردانو داروېدو لایق و . هغه دا ووې « که چیری په تاسو کښ

داسې څوك وي چه هغه ددې آزادۍ په مزو باندې چه تاسو ته له اسمانه راغلې ده ؛ زړورتيا نشي كولی يعني په دې آزادۍ باندې خوشحال نه وي نو هغه دې په دې كه خوله ووائی هيڅوك به ور باندې څه غرض و نه كړي ، هغه بيشكه ددې خوشحال رياست له پولی نه باهر چرته د نوی ظالم بادشاه په تكل تلی شی » تو لې جمعی ورسره خواخوږی وكړه ـ هر يو ددې خپلې نوی آزادۍ حفاظت ته تيزی ناست و . )

تبصره : په عام طور د منشی احمد نثر ته مونږ كامياب او دريم دور غوره نثر وايو . مگر لكه چه د مخه موهم وويل دده د نثر اصلی تحول او تطور ددې كتاب څخه شروع كيږی ددې كتاب عبارات او الفاظ ساده ، خوازه او عام فهم دی . دعاطف استعمال ډېر نشته مگر داوږدو جملو استعمال پكښې ليدل كيږی د منشی احمد په دې نثر كښې نوی شی دادی چه انگريزی لغات پكښې راننوتی دی . مثلاً په دې پورته نمونه كښې ( كمان ) انگريزی لفظ دی په دې وخت كښې يو خو داچه دانگريزانو سياسی او حكومتی اقتدار په وطن كښې غالب ، او بل دا كتاب په خپله دانگريزۍ څخه ترجمه ده نو ضرور بالضرور به دانگريزۍ رنگ پرې لو بدلی وی . په دې نثر كښې د پښتو خوږې محاورې استعماليږی او د پښتو نثر ته دادب چاشنی هم ور كړ شوې ده ادبی عبارات منځ ته راوتی دی . او ښه اصطلاحات په ژبه كښې داخل شوی دی .

## قصصی

د نثر يوه بله مهمه برخه قصص او روايات دی ـ داقصص او افسانې اكثره اختراعی وی . د ځنو اخلاقی مطالبو د تفهيم او تعليم او يادونورو اغراضو دپاره جوړيږی . او ځنی پكښې واقعی او اصلی هم وی . قصې او افسانې د يو قوم او وطن ملی مال دی . هر قوم او ملت د غسی ملی افسانې لری . په پښتو كښې هم داملی ذخيره او پانگه ډېره ده په تېره ، حماسی ، عشقی ، د دوو مينو قصې په پښتو كښې زياتې موجودې دی . مگر دې نقلو نو اكثرو تحريری شكل نه دی پيداكړی . او دياد داشت په صورت د خلكو په خولو جاری دی . علاوه د پښتو دقصو او افسانو زياته ليكلی شوې برخه په نظم ده . په دی سلسله كښې زياتې ترجمې هم شوی دی يعنی د فارسی او عربی نه دغسی قصصی كتابونه پښتو شوی دی په پښتو كښې چه څومره قصصی آثار موجود دی لاندې بيانيږی :

۱ـ عياردانش : دا د خوشحال خټك د « انوار سهيلی » د پښتو ترجمه ده . راورتې په خپل پښتو گرامر كښې ددې كتاب څخه څو وړې وړې نمونی راوړی دی . د خوشحال خان كوم

بلنثر څمونږ لاس ته نه دی راغلی ـ هر کله چه دی په خپل نوم دنثر آثارهم لری نو و یلو شو چه خوشحال خټک چه دنظم دیو لوړ مکتب مؤسس دی . او د پښتو دنظم او شعر دنیائی د پره ښایسته اورنگینه کړې ده ؛ دارنگ د پښتو دنثر د دویم دور موسس هم دی بلل کیږی . ده د پښتو ادب نثر او نظم دواړو خواوته پوره تحول اورشد ورکړی دی . او دادواړه فنو نه ئی د پخوانی رنگ نه وخکلی دی ، او ادب نوی دورئی شروع کړی دی . ده د پښتو په نثر کښی نوی اسلوب او سبک راوخکلی دی ، او داخون درویزه ، اوروښانیانو دنثر (نیم مصنوعی) سبک ئی دنثر په یومقبول او اصلی سبک بدل کړی دی . دختکو دټولی کورنی نثر دده په سبک بنادی هو ! دا سبک دده نه وروسته افضل خان او عبدالقادر تکمیل کړی دی . او ښه ښه آثارئی پکښی لیکلی دی ، مگر دی پکښی دتقدم حق لری .

( ۱ )

نمونه : ( یوه ورځ دباغ ښتن ناست و په تماشا د گلونو ، بلبله ئی ولیده چه مخ به ئی په پانو دگل مینس ـ اوپه فریاد فریاد به ئی پرې ناری وهلې . ورق زرنگار دگل به ئی په منو که پوتربله جدا کاوه ـ

( ۲ )

هم د تقدیر لاس وړاندې دسترگو دعقل څما پرده دغفلت اچولې ، او لرې کتونه هښیاری څما په تورې پردې دناپوهی اونادانی کښی ولاړه . اومونږه یو ځل په منگلې دبلا او ارمان کښی ونښتو .

( ۳ )

قول چه دې له ماسره کړی و ، اوس دې رضا ده چه مات ئی کړی . زه یوهېدم چه په نن زمانه وفاهغه دارو ده چه په دکان کښی دعطار روزگار مونده نشی .

( ٤ )

. چه وقت دصبحدم شه ، په پرواز راغله مترد د په مصلحت کښی چه څه کړم بیارته څم که په عزم جزم چه وتلی یم طریق دسیل دتماشا واخلم ـ

( ٥ )

هغه چه په مینځ کښی ځای نیولی او پښې دهغو په شهتو کښی نښتې وې او چه ئی وغوښت چه والوزی ، وزرونه ئی په ښتهو کښی ککړشو په دام دمرگ کښی پرېوتل ـ

( ٦ )

بادشاه ووی چه په دې حکم کښی له مانه خطاوشوه ، اوخبره په حال دقهر کښی څماله خولی وختله ، ولی بایده دی چه تا په هغه چاری کښی دغه رنگ تامل په ځای راووړ چه لایق دحال دناصحانووی . )

تبصره : ددې يو څو جملو څخه معلوميږي چه د پښتو نثر د خوشحال خان په وخت کښې څه لږه اصلاح موندلې ، او لکه چه مخکښې موهم وويل په دې وخت کښې د پښتو نثر يو نوى سبك پيدا کړى دى دې دوره ته مونږ د پښتو د نثر دويم دور ، او د ختکو د کورنى سبك وايو ، د خوشحال نثر د افضل خان د نثر په نسبت څه قدر کمزورى معلوميږى . ولى چه د ترجمې رنګ پکښې زيات دى او يو نيم ځاى بيخى هاغسى فارسى ترکيب راوړى لکه : (ورق زرنګار ، عطار روز ګار) نور نثر ئې که څه هم ساده او روان دى ، مګر د ځنو عباراتو څخه ئې مقصد ښه نه څرګند يږى .

۲ـ ګلدسته : دا د سعدى د ګلستان پښتو ترجمه ده ، چه عبدالقادر ختك د خوشحال ځوى ترجمه کړى دى . په دې سلسله کښې دا دويم اثر شمېرل کيږى . دا کتاب که څه هم اخلاقى ، او اجتماعى فوايد لرى مګر هر کله چه د قصو په شکل کښې ليکل شوى دى نو ځکه مو په دې سلسله کښې راووړ . د عبدالقادر نثر هم په دويمه دوره کښې داخل دى او د خپل پلار خوشحال مقلد ئى بولو ـ دده نثر نسبت خوشحال ته ښه او بهتر شوى دى خصايص ئى دا دى : روابط او عواطف ډېر نه استعمالوى ، صاف عبارات او لنډې جملې راوړى . مقصد ئى واضح او څرګند دى . تراکيب ئى پښتو دى ، مګر د ى هم د فارسى ترجمې څخه متاثر معلوميږى او ځينى فارسى لغات ئى استعمال کړى دى .

## حکايت

نمونه : ( يو بادشاه په کښتۍ کښې ناست و ، يو مريى عجمى هم ورسره په خدمت حاضر و . مريى کله سيند ليدلى نه و ، د کښتۍ ناسته ئى ازميلې نه وه . ژړا زارى فريادئى آغاز کړ ، اندامونه ئى واړه په لرزه شول . که هر څو مهربانى دلاسائى کوله آرام ئى نه کيده د بادشاه طبيعت ورځنى برهم شه له علاجه ئى عاجز يو حکيم په هغه بيړى کښې ناست و عرض ئى وکړ که حکم وشى زه ئى خاموش کړم . بادشاه ووې ډېر منت به دې راباندې بار شى . حکيم حکم وکه چه مريى سيند ته واچوى ! څو غوټې چه وخوړلې ، تر وېښتو ئى ونيوه ، بيړى ته ئى راواچاوه په لاس ئى بيړى کلکه ونيوه . په ګوښه کښيناست ، آرام ئى ونيو ـ بادشاه تعجب وکړ ، وئى فرمايل چه په دا کښې څه حکمت و ؟ حکيم عرض وکړ چه ده محنت د سيند د غرقيدلو ليدلى نه و . دا د بيړى ناسته ده ته زحمت و هم هسې رنګ قدر د عافيت هغه څخه وى چه په مصيبت ګرفتار شى . )

## ۳ ـ علم خانهٔ دانش :

دا د ابوالفضل د ( کليلى او دمنى ) پښتو ترجمه ده . دا اثر افضل خان ختك د تاريخ

مرصع مصنف په (۱۱۲۸) ه کښې ترجمه کړی دی . او د « علم خانهٔ دانش » نوم ئې پرې ایښی دی . د پښتو په نثر کښې دافضل خان خټك دا دریم اثر دی ؛ د دې کتاب دنثر سبك ، نګارش ، طرز تحریر ؛ د « ګلدستې » په شان دی . او د خوشحال د نثر په ادبی مکتب کښې شاملیږی . دعبدالقادر پشان اندې جملې استعمالوی اودرابط اوعاطف استعمال پکښې کم دی . دافضل خان د نثر خصوصیات مخکښې د تاریخ مرصع په برخه کښې ذکر شول . البته په عام لحاظ ، یعنی داسلوب ، طرز نګارش ، او دور ، په لحاظ به ددواړو په مینځ کښې څه زیات فرق موجود نه وی . صرف دو مره خبره ده چه دا ترجمه ده او هغه تالیف دی . نو د ترجمې اثر به پکښې خامخا موجود وی لکه فارسی لغات (شګاف ؛ چوب) چه پکښې استعمال شوی دی . پرته لدې خبرې نوره ترجمه ، ساده ، صافه او خوږه ده . او دهغه وخت یو ښه نثر ګڼلی کیږی .

نمونه : (راوړی ئې دی چه یوه بیزو وه ترکاڼ ئې ولید چه لرګی ئې پر یکاوه دوه میخه ورځخه وویومیخ به ئې په هغه لرګی کښې ټك واهه . تریوه ځایه به شګاف وشه ، بیابه ئې هغه ایرې کړ ، بل میخ به ئې پرې ټك واهه ، په دارنګ ئې چاوه . هغه ترکاڼ چه کارته پاځیدلاړ ، بیزو راغله په هغه چوب کښېناسته پریکاوه ئې دواړه خائی ئې دلرګی په شګاف ننوتې . اول میخ ئې وکیښ چه بل ټك وهم . دواړه خائی ئې محکمی په هغه لرګی کښې ونښتې بیزو په ژړا شوه دائې ووی ؛

<table>
<tr><td>په جهان کښې بهتر دادی</td><td>چه هر څوك دې خپل خپل کار کا</td></tr>
<tr><td>هر سړی چه خپل کار نکا</td><td>ځان به ما غوندې زرخوار کا</td></tr>
</table>

ځما کار میوه ټولول دی ، نه اره څکول . هنر ځما دځنګل تماشا ده نه تبر تیشه ـ ناګاه ترکاڼ راغی هو مبره ئې ووهله چه هلاك شوه . دامثال می ځکه و وی چه درو ز ګری کار دبیزونه دی . او دا حکایت می ځکه را ووړ چه هر چاته خپل کارپکار دی ـ قدم دخپلې اندازې دې نه وباسی )

## ٤ ـ آدم خان درخانۍ :

یو بل قصصی اثر چه ځمونږ ګوته راغلی دی د آدم اودرخو قصه ده داقصه ( مسعود ) نامی دپښتوپه نثرلیکلی ده . مسعود دعبدالله ځوی اودښه قلم خاوندو ، په ( پښتانه شعرا ) کښې دده سوانح بیان شوی دی .

دمسعود دژوند وخت نه دی معلوم . مګر دومره معلومیږی چه د آدم خان له عصره یعنی (۱۰۰۰) ه وروسته اوسېده .

د مسعود نثردختکو دنثر سبك ته نږدې دی اوددې مکتب تابع اومقلد معلو میږی په دې

لحاظ ده ته هم ددویم دورنثر لیکونکی وایو . غالبه داده چه مسعود داقصه دافضل‌خان دوخت نه وروسته لیکلې ده . اوده چه کوم وخت داقصه لیکله نودخټکودنثرادبی‌مکتب ښه خرګند شوی اومشهورشوی و ، اودی ترې مستفید شوی دی . مسعود هم ددې‌دوردنثر پشان ( عاری) نثروائی لنډې جملې استعمالوی . یونیم ځای فارسی لغات هم زاوډی . اما عبارات ئی پوره پوخوالی نه لری .

نمونه : ( په پیش زمانه کښ په یوسف زو کښ یوځوان پیداشوچه آدم‌خان نوماندو ـ دحسن خان ځوی و ، او یوه ښځه پیدا شوه چه درخو نو مانده وه دطاؤس‌خان لوروه . دانور پسی له سره نقل‌کوم چه آدم اودرخو دیو فقیر له ګفت پیداشو بعد له‌هغه ـ حسن‌خان‌نوزویه نه‌درلود . یوفقیر راغی نعره‌ئی‌وکړه ، حسن خان وویل په‌داډېرو فقیرانودې بلا ګله‌شی چه‌خیراتونه صدقې وډی اودعا نه کوی پس دې فقیرو‌ویل چه‌څه‌دعا غواړې ؟ ـ ده وویل چه‌ځوی نه‌لرم . دې فقیریوه پخه خر ما دوه اومې خرما ورله ورکړې . چه‌واخله دایوه خرما پخه‌ده وئی‌خوره دادوه او مې دی وئی غورځوه بخت دې خپل‌دی . یوځوی به‌دې پیداشی دوه بې‌خدمت‌ګاران وی اواوه غویان به هر کال په‌نام دالله خیراتوې ـ داووپیرانو مرتبه لری ـ دا فقیر ځنی لاډ یوه خرمائی‌وخوډه ، دوه‌ئی‌وغورځولی . بعدله‌یوه کال ځوی‌ئی پیداشوچه دحسن سیاری نه درلود . نوم‌ئی آدم‌خان پرې کښېښود الخ )

۵ـ ګنج پښتو : دقصو اوو‌ډو و‌ډو حکایتونو مجموعه ده . ددې اثرمصنف منشی احمد جان دی داکتاب‌هم لکه (تاریخ فرشته) دده دپخوانو کتابونوڅخه حسابیږی . نوبه‌دې لحاظ دده دنثر دتحول اوتجدد نوی رنګ په‌دې اثر کښ پوره نه معلومیږی . « ګنج پښتو » که څه هم دقصو یوکتاب‌دی مګرځما په‌خیال چه دابه‌تعلیمی لحاظ یعنی دپښتو دزده کونکو د پاره لیکل شوی دی ؛ نو په‌دې لحاظ یو تعلیمی اثر ورته هم ویلی شو ـ ددې کتاب سبك او اسلو ب د (تاریخ فرشته) دسبك پشان دی .

نمونه :(دبخیل‌سړی هم مال زیاتیږی اوهم‌ئې‌غم زیاتیږی . یعنی د وه تاوانه ورته پېښیږی لکه یوبخیل سړی و چه ډوډی‌ئې‌دشاتوسره خوډله ناګهانه‌یه‌کوڅه کښ چا مېلمه ورته آوازکړ ، ده په‌تلوار سره هغه ډوډی لیری کړله اوچه‌شات‌ئې لیری کول مېلمه پرې ورغی شات‌ئې لیری نکړی‌شول ـ لیکن دبخیل ګمان‌داوچه دی به‌یوانځی شات نه خوری نوورته‌ئی‌ویل چه‌خوره کنه که‌شاتوته دې مینه کیږی ، مېلمه و یل چه ښه‌ده شات خوډېر ښه‌شیزدی ولی به‌ئې نه‌خورم . جوډلاس‌ئې پوری کړ شات ئی څټل چه څه قدرئی وڅټل نوهغه بخیل ته‌ئی وویل چه‌بې‌شانه ښه خوند لری بخیل و ویل چه

ربښتیا دی مزه ئې شته ، خو ډېر ئې مه خوره ، دسړی زړه سیزی مېلمه ویل چه نې شکه ډېر ښه وائې زړه سیزی لیکن ستا زړه سیزی - ! !)

(له گنج پښتو څخه)

دمنشی احمد دوه نور آثار چه دده دنوی سبك پوره نماینده گی کوی اودده نثر په یو نوی خوږ ادبی نثر معرفی کوی دادی :

٦- دقصه خانی گپ : ددې کتاب نثر په ټوله معنی دپښتو یو خوږ ، مقبول نثر دی . او دپښتو دنثر ددریم دور غوره نثر گڼل کېږی . دا کتاب منشی احمد په وروستنو وختونو کښی جوړ کړی دی . منشی احمد جان ته مونږ دپښتو دنثر ددریم دور ، او دیو مخصوص سبك ، او اسلوب موسس ویلی دی - ده دپښتو نثر دپخوانی اوزاړه سبك څخه راواړولی دی . په دې وخت کښی د پښتو نثر خپل حقیقی مفهوم ته نږدې شوی دی . علاوه په دې وخت کښی دمطالبو او موضوعاتو په لحاظ هم دنثر دایره ډېره وسیعه او پراخه شوې ده - ښه ښه موضوعات میدان ته راغلی دی . ښه آثار لیکلی شوی دی اودپښتو دنثر دپاره ښه خدمتونه شوی دی . دادور د(۱۳۰۰ هجری) سن څخه راپدی خوا شروع کیږی . ددې سبك پیروان ډېر دی ، او دا سبك تراوسه پورې چلیږی البته څه معمولی تغیر که موجود وی نو وی به -

۷- هغه دغه : داهم دمنشی احمد جان دوروستنو وختو کتاب دی دپښتو دنثر تحول یکښی پوره لیدل کیږی . دا کتاب دضرورت او فایدی په لحاظ یو تعلیمی ، او دپښتو دزده کړې دپاره مفید اثر دی مگر دمطالبو په لحاظ په قصصی سلسله کښی شاملیږی .

## آدم درخانی

نمونه : (درخانی په سوات کښی دبری بازدری دیو طاؤس خان نومی پښتون لوروه او دبابا وخان نومی یو پښتون هلك چنغله وه . یوه ورځ د درخانی دترور د لور واده و په هغی کښی ئې د کوزی بازدری یو آدم خان نومی خانزاده باندې ستر گی خوږې شوې «تپ له دواړه لاسه خیژی» هغه هم پرې زړه بایلود . دې اور داسې لمبه وکړه چه دواړه خلاصېدو او دمېلمنو درخصتېدو نه پس دواړو په لاره کښی هر ومرو یو بل ته په غلاغلا کتل ، ماسخوتن په حجره کښی چه آدم خان یوه گوته رباب ووهلو نو یو سوړ اسویلی ئې وکړ اومیرو بلو خیلو خوږ ویارانو ته ئې دزړه حال ووې . دهغه دامرادو چه په دې شپه د آشنا دیدن ته لاړی .

پردو کورونو ته تلل «دخالصی دل نه و» ولی میرو بلو هم ورته حلال کړی چرگان و سمدستی ئې ملاوتړله اوشپه په شپه بری بازدرې ته لاړل ، بلو ئې چرته د څوکی دپاره

ودرولو اودوی دواړه د درخانۍ کورته ورغلل . میرو ورته وړومبی روګودر صحیح
کړی و آدم خان د آشنا کټه ورسید . درخوتار په تار په پالنګ اوده پرته وه . ځنګزنی
سپوږمۍ اویونیم ستوری ئی په غلاغلا دیدن کولو ـ ده یو ساعت په غټو ستر ګو کتل
چه ښه زور زیری ئی وویست نوورو غوندی ئی د ښېې کټه کوته ترینه ونیوه او و ینېه ئی
کړه چه ډېر خوستر ګې و غړولې نو هغه بشره ورته ولاړه وه ، چه دچا په خیال کښ
او ده شوې وه حیرانه شوه چه دا خوب دی که وینه ځوځله ئی ستر ګی و مښلی ،
او بیائی و غړولې چه ښه یقین ئی راغی ، نو پاځیده ؛ او ورتر غاړه وته ـ غوږ
کښ ئی ورته ډېر ډېر هر کـلی وکړ او بیائی د خپلی مینی د فتر ورته پر انست ـ
په خلکولو یه شپه تېره شوه او په دوی دستر ګورپو . میروشپیلی وواهه ، مطلب ئی
دا چه چرګانو بانګو هووی ـ ملایا نواخ تووخ جوړ کړ هسی نه چه شرمینګی جوړه
شی او داوښ په شاموسپی ونه خوری ـ آدم در خانۍ داو ښکو ډکی ستر ګی یو
بل نه جدا شول . الخ ) ( له قصه خانۍ ګپ ځخه )

تبصره : خوازه عبارات ، پریکړی لنډی لنډی جملی ښه اداء سلاست او روانی د لغاتو سو چه
والی ، دمتلونو ، امثاو ، اصطلاحاتو ، محاورو استعمال ددی نثر مهم خصوصیات دی . ددی
نثر زیات خوږ والی د متلونو او اصطلاحاتو استعمال ته راجع دی په دی نثر کښ دبلی ژبی
رنګ هیڅ نشته ـ دپښتو سوچه ، اوخالص نثر ګڼل کیږی . ددی نثر عبارات ساده او آسان
دی . او د پښتو یو روان او سلیس نثر ورته ویلی شی . دا نثر دروز مره محاوری سره
موافق او برابر دی . څه قدر ادبی رنګ ئی هم پیدا کړی دی روابط او حروف عواطف
پکښ کم استعمالیږی دا نثر د فصاحت او بلاغت نه ډك د پښتو یو خوږ او مکمل نثر دی .
او په ادبی اصطلاح کښ ورته «مرسل» نثر وائی . )

## تعلیمی

د نثر یوه بله مهمه برخه تعلیمی برخه ګڼل کیږی . ټول موضوعات او مطالب چه په یوه
ژبه کښ داخلیږی . د یو عامل په واسطه وی دځینی موضوعاتو عامل ، شخصی عقاید ، او
ذاتی میلان وی ، او ځینی مطالب د حکومتونو په واسطه عمومیت او غلبه پیدا کوی . تعلیمی
برخه هم د حکومتونو په توجه میدان ته راوځی مګر هر کـله چه پښتونخکښ د حکومتونو
توجه نه ده شوې ، نو په دی لحاظ په تعلیمی خوا کښ له پخوا ځخه د ومره څه نه لری .
البته نن پرون چه د موجوده پښتون پالو نګی حکومت له خوا ورته توجه وشوه ، او پوره پالنه
او روز نه ئی کیږی نوامیددی چه په دې سلسله کښ به هم پښتو ډېر ژرخپل نواقص پوره

کړی او یو حد ته به ورسیږی . بیا هم په دې سلسله کښې چه تر اوسه پورې څه موجود دی لاندی بیانیږی :

## ۱ ـ معرفت الافغانی :

دا کتاب پیر محمد کاکړ جوړ کړی دی ـ پیر محمد کاکړ د پښتو یو زبردست شاعر او دیو ښکلی دیوان خاوند دی . دی د احمد شاه بابا معاصر او د شهزاده سلیمان استاذ و (دده ژوندون تر (۱۱۹۷) ه پوری ثابت دی کوم وخت چه احمد شاه بابا وفات شو او شهزاده سلیمان پر تخت کښیناست . نو پیر محمد د (معرفت الافغانی) په نامه یو کتاب د پښتو د صرف نحو ، لغت او محاورې په باب داعلیحضرت سلیمان حضور ته وړاندی کړ او د هغه له لوری ومنل شو او قدرئی وکړی شو . دا کتاب په افغانستان کښې د پښتو لمړی صرف نحو بلل کیږی ـ او گمان کوم چه دا به د پښتو لمړی کتاب وی چه په یو پادشاهی دلبار کښې ئی قبول اونوازش لیدلی وی . اوس ددی کتاب له مقدمې څخه د نثر یو څو جملې چه مونږ ته پلاس راغلی دی و گورئی : ـ

نمونه : ( په ښکار پسی عبث عمر ضایع کیږی ـ ښکار که وکړی باك نشته ـ ښکار مباح دی ښکارښه‌دی کله کله ـ غم به دې‌لیری کړی له دله ـ با زار لره ولاړ شه چه پیسه نه لری هغه دې نه‌ځی ـ کښت خواری غواړی ـ د کښت اوس وخت‌نه دی د کښت وخت لا پسې دی ـ کښت ډیر مه کوه واك به دې پری ونه رسیږی اوبه پری‌وچی‌شی، حاصل‌به دې‌له لاسه‌ووځی. خواری به‌دې‌حبطه شی‌سږ کال پرپوانی ده ـ کاختی دې‌رب نه راولی ـ کاختی‌نشته خدای دې سر دشهزاده صاحب لری چه سر چمشه دجود ده ـ وریښم زینت دښځودی‌ـ اونارینه ولره خدای اورسول ناروا کړی‌دی هم په‌دغه رنگ‌سپین زراوسره‌زرناروادی، پرهیزدې مردان‌مسلمان ورځنی‌ډیر کړی. چیری نه وی چه په‌اغوستن سره ددوی‌ځان سزاواردا ور کړی. اوگوته په قدر دیوه مثقال‌دسپین‌زرو که حاکم‌یاقاضی‌یامفتی ئی دپاره دمهرد کاغذ په لاس کړی‌باك ئی نشته ـ

تبصره ـ دانثر په تعلیمی مقصد لیکلی شوی دی . نوځکه ورته تعلیمی نثر وایو ـ د دې نثر سبك اواسلوب دخبرو نثرته قریب اونږدې‌دی . که‌څه هم‌څه قدرفرق اوجلا والی‌پکښې‌لیدل کیږی . په دغه وخت کښې‌پرته لدې نثر څخه دارنگ بل‌نثر نشته ـ دانثر هر کله چه په تعلیمی‌غرض لیکلی شوی و، نو ځکه دهغه وخت دعامونثر نوڅخه ئی سبك ، اوطرز جلادی . وړې اوپری کړې جملی استعمالوی ، په هره جمله کښې بیل بیل مطلب بیانوی ـ روابط هم ډیر نه راوړی ـ دقافیو اوسجع مراعات هم پکښې نشته ، صرف یوساده ، آسان ، روان ، خوږ مقبول اودهغه وخت ښه نثردی . مطلب واضح اوڅرگند اداکوی . خفا اوپیچیده گی پکښې نه لیدل کیږی .

په عام لحاظ دانثر هم په دویم دور یعنی دختکو په سبك کښی داخلیږی مگر په خاص لحاظ ، دانثر یومستقل سبك دی . اوځانله خصوصیات لری .

## ۲ ــ بهارستان افغانی :

دا کتاب دقاضی میراحمد شاه « رضوانی » دی ( رضوانی ) پــه پښتو کښی دزیاتـو تـالیفاتو خـاونـد دی . داکتاب ده په‌تعلیمی سلسله کښی دمکتبونـو او مـدرسو دپـاره جوړ کړی دی زیاته برخه ئی انتخابات دی . اوخه یکښ‌دده خپل مضامین هم شته . رضوانی دپېښور دا کبر پورې دی د ( ۱۳۰۰ ) هجری په حدود وکښی ژوندی و ـ رضوانی دعصری علومو فاضل، اوپه انگریزی‌ـ هم پوهېده . دده دنثر سبك، اواسلوب دمنشی احمد جان د سبك پشان دی . که څه هم مو نږده ته دمنشی احمد مقلدنه وایو مگر بیا هم هر کله چه د دواړو دنگارش طرزنږدی‌بلکه یودی، نوځکه دواړه په یوه سبك‌کښی شریك گڼو‌ـ البته منشی احمد نسبت ده ته دډېر خدمت حق لری، ځکه دپښتو په نثر کښی زیات آ ثار لیکلی دی، ا و رضوانی پس له منشی احمد څخه دو یم سړی دی چه دپښتو دنثر په تحول اوتطور کښی دحق خاوند دی دپښتو دنثر دویم دوره‌په دی دو وکسانو قایم او ولاړ دی . او دا دواړه دپښتو دنثر د دویم دورستنی دی .

## ۳ ــ شکرستان افغانی :

داد میر احمد شاه رضوانی دویم اثردی ؛ چه په تعلیمی سلسله کښی ئی دمکتبو نو د نصاب دپاره لیکلی‌دی. پر ته لدې دوو آثاروڅخه رضوانی په اردو کښی دپښتو یو صرف‌ونحو هم لیکلی‌ده چه ( وافیه ) نومیږی اویو دپښتو دنظم دیوان هم لری شکرستان هم لکه دبهارستان زیات انتخابات دی ـ نثر اونظم دواړه لری ـ اودده خپل نثر اونظم پکښی هم شته .

## (دبوډی‌ـ غوا)

نمونه : (یوه بوډی‌ـ دڅه کاردپاره‌چرته بهرته وتی وه ـ کور کښی په یوه توره کټوی‌ـ کښی‌داوړو بوس‌پراته وو‌ـ چرته‌دچا خوشی‌غوا ورننوتې ده. لوښی‌ئی بویول کټوی‌ـ کښی‌ئی بوسو دپاره سر منډلی‌دی‌ښکرئی پکښی‌نښتی دی ـ کټوی ئې‌په سررا او چته کړې ده ، مخ سترگی ئی هم پکښی پټی شوې دی شمکوره شوه ،لارئی نه مونده دې خواهغه خوا کرو کوره گرځېده . بوډی‌ـ چه راغله څه گوری چه کو ټه کښی یوځیزاوتر لگیادی گرځی ، چه نوره جثه ئی دغواده ، او سر ئی دتـورې کټو ی په شان دی ـ پخوا ئی چری داسی شکل لید لی نه و ـ گمان ئی پرې دڅه پیری

یادبلا وشه ـ چغې ئې کړې اوقې له راغله ، چه راشه وګوره داخه آفت رانوتی دی ـ
اوقې راغلو ـ ورته ئې ووی خپه کیږه مه ! خیر به شي ـ دا بلا نه ده غوا ده
بنکر ئې په کټوي کښې نښتي دی . لاړ چاړه ئې راوړه ، غوا ئې حلا له کړه ، چه کټوی وباسی
کټوی ونه وته ، نښتی وه ـ بیادغواسر ئې راښکه چه کټوی تری راووځی کټوی
هم ماته شوه ـ اوقې اول وژړل بیائې وخندل ـ هزاره ووې چه ولې دې و ژړ ل
اوبه څه دې وخندل ؟ وئې وې چه ځکه مې وژړل چه که چیری زه تاسو کښې نه وم
نو بیابه څه کوی ـ اوومې ځکه خندل چه زه هم پوه نشوم چه داڅه وشو هم غوا رانه
مرداره شوه هم کټوی ماته شوه . )

تبصره : دانثر هم ددویم دوربنه اوغوره نثر ګڼل کیږی . روان ، اوخوازه عبارات او
د پښتو په قالب برابر ترا کیب لری . نه پکښې دبلې ژبې لغات شته ، او نه پکښې د بلې ژ بې
دتر کیب څه اثر معلومیږی د پښتو په خوږه محاوره موافق ، اوښه لغات پکښې استعمال شوی دی .
دمنشي احمد دوروستنو نثرونو سره اوزه په اوزه اودریږی . صرف فرق دادی چه هغه امثال
متلونه ، محاورات ډېر استعمالوی . اودلته تش د پښتو سوچه او خالص لغات اود پښتو په قالب برابر
عبارات استعمالیږی . په دې نثر کښې هم لدې کبله چه جملې لنډی لنډی دی او زرزر قطع
کیږی دروابط اوعاطف استعمال کم دی . صرف دمعنی اومضمون په ارتباط اکتفا کیږی .
داسبك په پښتو کښې خوږاومقبول سبك دی ، البته ورځ په ورځ پکښې څه اصطلاحات اوتغیرات
پیښیږی اما اساساً اوداصولو په لحاظ داسبك تراوسه پوری موجود اومقبول دی .

خاتمه : د پخوانی نثر متعلق چه څومره نمونې ځمونږ لاس ته راغلې وې هغه داوې چه ذکر
شوې اودمطالبو په لحاظ بیلې بیلې بیان شوی ـ دا زه نه وایم چه د پښتو دنثر آثار او کتابونه
یادپښتو دنثر مطالب اوموضوعات هم داووچه بیان شول بلکه یقیني ده چه پښتو به پر ته لدې
څخه نور آثارهم لری ، اوپه نورومطالبو اوموضوعاتو کښې به ویل شوی وی ، مګر ځمادتتبع اوپلټنې
ددائری وسعت هم دومره و . ګوندې په آینده کښې څوك زیات موفقیت پیدا کړی . اوپه دی
موضوع کښې ښه تشریحات وکړی . البته په دې مقاله کښې دومره شوی دی چه ، بیلو بیلو دورو ،
اوسبکونو ته اشاره شوې ده ، اودهغو دپاره څه حدود هم تعین شوی دی نو که چیر ته یو بل
اثر هم پیداشی په ډېره آسانۍ هغه په یوه دوراوسبك کښې داخلیدی شي اولوستونکی ورته
په خپله یوسبك اودورمو ندلی اوپیدا کولی شي ـ

❀ ❀ ❀

## ددې مقالې مآخذ


۱ـ تاریخ ادبیات ایران د جلال الدین همائی

۲ـ الایجاز فی تاریخ الادب العرب

۳ـ اردو کی راسالیب بیان — دډاکتر محی الدین قادری

٤ـ بهارستان افغانی — دقاضی میر احمد شاه

٥ـ شکرستان افغانی — » » »

٦ـ مخزن قلمی — داخون درویزه

۷ـ نافع المسلمین — دنور محمد

۸ـ کلید افغانی — د ( پادری هیوز )

۹ـ گلشن روه — د ( راورټی )

۱۰ـ فواید الشریعه — د ( اخوند قاسم )

۱۱ـ المنهل العذب فی تاریخ اللغة العربیة

۱۲ـ پښتانه شعرا

۱۳ـ مقدمهٔ گرامر راورټی

۱٤ـ دقیام الدین خان خادم مقاله د ۱۳۱۹ په سالنامه کښې

۱٥ـ دحبیبی مقاله د ۱۳۱۹ » » »

# داخلي مهم وقائع

## ۱۳۲۰

ښاغلي يار محمد « نظامي »

۱۳۲۰ شمسي کال چه د «۱۹٤۱، ۱۹٤۲ ع» سره برابردی، دا کال دعالم بشريت د پارد ډېر دشروشور کال ګڼل کيږی، اوداسی کال ددنيا تاريخ د انسانيت دتاريخه څخه ترننه پوری په ستر ګونه دی ليدلی، دجنګ دورخ پەورخ ډېرېدو اواسفناك واقعات هرچاته ښکاره او محترمو لوستونکو به دراډيوګانو اوداخلی اوخارجی روزنامو اونشرياتو په ذريعه د غه غم راوستونکی وقائع اروېدلی اومطالعه کړی وی، چهپه‌دې دوو کالو اوخوميا شتو کښې مدنی دنيا دکمومشکلاتو سره مخامخ شوې اوپه څه قتل اوقتال او مرګونو او ژوبلولو او ناوړه حوادثو اخته‌ده اودځمکی په مخ داسی ځای پاتی نه دی چه ددې جنګ دلاسه به هغه ځايته ځانی او يااقتصادی زيان نه وی رسيدلی .

ليکن دخدای په فضل افغانستان ترننه پوری په امن او سلام ژوندون کړی . د افغانستان په سياسی ژوندون کښې دلوئی جرګې لويه فيصله يوه غټه خبره اولوی فعاليت شمېرل کيږی، چه دغه‌دی موږ داهميت له‌خوادهغی جريانات لوستونکوته وړاندې کوو اوبس له هغه به نور مهم وقائع دوقوع دتاريخ پترتيب څېړوو .

### دلوئې جرګې جريانات

#### او مراسم

لکه چه ښاغلی لوستونکی خبردی؛ دحکومت په پيشنهاد اوډذات اشرف همايونی د حضور دمنظورۍ سره سم لويه جرګه يعنی دافغانستان لو ملی شوراء د مملکت دمهمو چارو په شاؤخوا کښې دغورو اوفيصلی دپاره مرکز ته ورغوښتل شوې وه پرته دملی شورا د وکيلانو اوداعيانو دمجلس اعضاؤ يوزرتنه نور، دمملکت دټولو برخو څخه دملت له خوا وکيلان ټاکل شوی اوکابل ته راغلی‌وو، اودعقرب پر(١٤) دماپښين پر(۲)بجی دملی شورا په ماڼۍ کی داعليحضرت په وينا چه دجرګې لمړی مشرو داجرګه په ملی ژبه وپرانيستله شوه .

د ملي لوئي جرگې له مناظرو څخه :- عاليقدر جلالتماب علي محمد خان دخارجه امورو وزير دخطابې پر منبر باندې دسياسي جريانا تو پهٔ شاوخوا کې
خپله بيانيه دجرگې وحاضرينوته اوروي ( ۱٤ دعقرب ۱۳۲۰ )

# دأعليحضرت همايوني افتتاحيه

## وينا

ځما عزيزانو !

په ډېره مينه ، وتاسي ته واوته . ښه راغلي وايم ، اوخوشحال يم چه دخپل ملت مشران د وطن دښېګڼې دپاره په دې مجلس کې غونډه اوټول وينم .

عزيزانو !

دغه ستاسي ټولنه په مرکز کې ، دوې وجهې لري : يوه داچه ما پخپله شخصاً آرزو درلوده چه دګران ملت مشران اونمايندګان چه دملت داحساساتو اوآرزوګانو ممثل دي ملاقات کړم ، اوبله داچه حاضر وضعيت چه ددې عالم ګير جنګ له اثره څخه پيدې دوه کاله اوشومياشتو کې پېښ شوی دی همدغسې مجلس اوټولنه يې غوښته .

تاسي ټوله پوهېږی چه ددې جنګ په اثر ، په لنډ زمانه کې لوی تغيرونه ، نه يوازې ددنيا په جغرافي وضعيت کې ، بلکه دقومو دژوند په ټولو څانګو کې پېښ شويدی ، محارب او غير محارب ئې په يوډول دولو متأثر کړيدی په تېره بيا دشومياشتو راهيسې جنګ له غربه څخه وشرق ته راګرزيدلی دی ، اوهغه مملکتونه چه پخوا تردې يې له جنګه څخه ځانونه نسبتاً ساتلی بلل په ناوړه صدمو اخته شوی دی .

نوبنا پردې لازمه شوه چه افغانستان چه پدې حصه کې دشرق يومهم موقع لري په دې نازک وخت کې له خارجه سياسته څخه چه دصلح اوبی طرفی پراساس و او دی ددی موجودو واقعو په مقابل کې لکه چه ښائي هغسې غور اودقت وکی ، اوملت اوحکومت چه هيڅ کله ئې يوله بله جدايي نه درلوده په کلی اوجزئي مسئلو کې دمملکت تلمتحد او يولاس دی د فکر تبادله اوتصميم وکی .

نودغه دی چه نن دلوی خدای په نامه داجرګه افتتاح اوپرانيزم ، اوله خاوند څخه په ډېر عجزغواړم چه تصميمونه ددې لوی جرګې ددې پاک خاوری دسعادت اوښېګڼې باعث وګرزوی .

او ملك او ملت داتفاق او يولاس والی په برکت دهغو ښېګڼو او افتخاراتو ته چه زما زړه يې غواړی ورسوی اودزمانې له بدو واقعاتو څخه مو په خپله ساتنه وساتی . »

❀ ❀ ❀

وروسته دملی شورا رئيس ، دوکيلانو له خوا يوه وينا وکړه اوپه هغه کې ئې د ټول ملت احساسات دخپل ګران پاچا په نسبت څرګند کړی دحکومت دښې اداري اواقداماتو څخه او داچه حکومت په هروخت کې دملت آرزوګانې اوآراء پوښتی اودهغو سره ئې سم رفتار کړی دی ، شکريه وکړه !

دهمایونی اعلیحضرت تر تشریف راوړلو وروسته ج ، ع ، ج ، ا ، ا نښان والا حضرت صدراعظم صاحب چه دجرګې دوهم رئیس ؤ په وینا کی دخارجه امورو وزیر معرفی کی چه دافغانستان ددې دووکالو داوضاعو اوسیاسی جریاناتو په شا ؤ خوا کی توضیحات ورکی .
ع ، ج د خارجه وزیر په یوه مفصله وینا کی د حاضر ینو دمعلو ماتو د پاره وار د وا ره دبین المللی جنګک ددوؤ کالو حالات بیان کړل ، وروسته ئې دافغانستان دحکومت و سیا سی خطمشی ته چه په دې مدت کی ئې دجنګک داوضاعو سره سم لرلی دی شرحه ورکړه او دائې ښکاره کړه ، چه دجنګک له ابتدا څخه د کاملی بیطرفۍ سیاست ټا کل شوی اووټولو متحا به دولتو اوجامعهٔ ملل ته خبر ورکړه شو ؛ چه افغانستان ددغه سیاست له مخی غوښتل چه دټولو دولتو سره خپل د دوستۍ سیاسی روابطوساتی اودتجارتی اواقتصادی مناسباتو په ټینګولو کی بخت اوبسی .
هغهؤ چه تر دوؤ کالو پوری وخت کی دغه سیاست په ښه ډول اوپه ټول دقت معمول کړه سو ، که څه هم دجنګک شخړو دافغانستان په سیاسی اواقتصادی اوعمرانی مسئلو کی مشکلات او خساري پیښی کړې ؛ سره له هغه موږ دخپلی بیطرفۍ پر سیاست باندی پابند او ټینګک ولاړ او د هغه وادامی ته تصمیم کونکیؤ . څو چه دهغی اعلامیی پهقرار چه څو وخت دمخه دکابل پهراډیو کی وټولوته وویل سوه ، دانګلستای اوشوروی سفیرانو دیوې محدودی عدې المانیانو او ایطالویانو ایستل ؛ چه دافغانستان پهخدمت کی ئې کار کاوه اودمخهئې هم په خپل زعم سره ددوی و جود په افغانستان کې دځان دپاره د خطر اسباب ګڼه ، د دوستۍ په ډول مګر په ر سمی تو ګه وغوښتل ، اوځکه چه له یوې خوا ددوی دیوې ډېری برخی قرارداد ختم شوی اوتګک ته تیارؤ اودبلی خوا هغه مواد چه دافغانستان داقتصادی او صنعتی چارو دپاره لازمؤ اودغه نفر ی هم ددغو کارؤ دپوره کولو دپاره استخدام کړی سوی و ؛ د تجارتی لارو دبندیدلو له لا مله نه رارسیدل اودبلی خوا دافغانستان د ګاونډیانو سره دښه نیت دزیات اثبات دپاره ، حکو مت هم تراوږدو مشورو اودملی شورا دصلاحیتلرونکی کمسیون دمشورې ورکولو سره سم ، او وروسته تر هغه چه الماناو ایطالیا دسفیرانو رضائیت ئې پهدې خصوص کی حاصل کی اودانګلیس دوزیر مختار څخه ئې دهند اوعراق له لاری وتورکیه ته ددوی د آزادانه رسولو په نسبت ، دضمانت لیك واخستی نو ئې تصمیم وکی چه دغه اتباع دی (بیله ددغو دوؤ مملکتو دسفارتو اعضاء چه دپخوا په ډول به په کابل کی پاته وی) مرخص کی .

لکه چه دعقرب په ۸ ، ۹ دوی دافغانستان تروپش تیر شول ، دخارجه چارو وزیر د خپلی وینا په آخر کی څرګنده کړه چه انګلیس سفیر وموږ ته پهخوله اووروسته ئې دهغه پهتائید کښی په لیك اطمینان راکړی دی ، چه بله هیڅ یوه غوښتنه لکه دلاری او حربی مرکزو او نورو غوښتنه به نه وکی ، لاکن سره لهدې ځکه چهدنړۍ اوضاع هره ورځ تغیر کوی ، ښه دی چه

دلوئې جرگې له خوا دمملکت راتلونکې خطمشي تصويب کړه سي چه دهغه سره سم رفتار وسي .
ددې وينا په اثر دلوئې جرگې شوتنه محترم وکيلان لکه جناب حضرت فضل عمر خان مجددي اوفضيلت مآبان محمد سعيد خان دچار باغ حضرتصاحب اودتگاب آخندزاده صاحب اود گيان ملا صاحب اونورو دحرارته ډکې ويناوې چه دمملکت دبيطرفۍ دسياست پرمنلو مبني او دملت ټينگ عزم ددغه سياست دادامې دپاره اودخپلو حقوقو اوملي شئوناتو دخوندي کولو اودهر ډول تيري اوتعدي په مقابل کې دمملکت دسرحدو دټينگولو په خصوص کې وې ، دټولو په چکچکو اوخوښۍ سره استقبال کړی شوې .
دا لمړی جلسه د ماپښين پرڅلور نيمو بجو ختمه شوه اوپه دې سبا ما پښين پر ( ۳ ) بجو دوالاحضرت افخم صدراعظم صاحب ترمشرتوب لاندې دلوئې جرگې دوهم مجلس منعقد شو او تر اوږ دومشورو او کامل اومفصل غوراو دقت کولو و روسته دټولو وکيلا نودرأيو په کامل اتفاق سره دالاندينۍ مصوبه ومنله شوه اودجناب نورالمشايخ صاحب له خوا ولوستله شو ه .

❀ ❀ ❀

## دلوئې جرگې دمصوبې متن

### ( چه دعقرب په ۱۵ منلې شوې د ی )

« نحمده ونصلي على رسوله الكريم. الحمد لله رب العلمين والعاقبة للمتقين » « مونږ دافغانستان دملت نمايندگان دهغه اختياراتو په موجب چه ځمونږ دمو کلينو له خوا مونږ ته را کړل شوي دي اودلوئې جرگې دپاره کابل ته راغلي يو ، پس له دې چه دعاليقدر جلا لتمآب د خارجه چارو دوزير بيانات مود دنيا دگذارشاتو اودافغانستان دسياسي جرياناتو په شاوخوا کښېترنه پو رې واوريدل اوپه هغه باندې موهم غورا ودقت وکړ داسي په دې لاندينې ډول بيان کو و .
چه داعليحضرت المتوكل على الله دحکومت دسياست خط مشي چه تراوسه پو رې ئې تعقيب کړی دی ځمونږ دهيلو اواميدونو سره مطابق اوسم او کاملا درسته ده نومونږ دلوئې جرگې نمايندگان دکاملې بيطرفۍ سياست چه تراوسه پورې ساتل شوي اوپه آينده کښې به هم دقطع اوحکم په ډول بايد وساتل شي تصديق کوو .
افغانستان غواړي چه دمعاهد دولتونو سره مخصوصاً خپل همسايه دولتوسره دصلح په سا حه کښې ژوند وکړي . امامونږ نمايندگان دهغه اختياراتو په موجب چه ځمونږد مو کلينو له خو ا مونږته را کړل شوي دي ددې امر دقطع اوختم په ډول بيان کوو چه د افغانستان ملت حا ضر نه دی چه هيڅ يوخواهش يامطالبه چه مستقيماً ياغيرمستقيم ځمونږدشرف ، عنعنات اوتام استقلا ل متضاد وي له هرې خواچه وي دبحث يادقبلولو مورد وگرزوي يعنې هيڅ يوخارجي حکو مت ته

به په هیڅ صورت اوهیڅ ډول پلمه اوبهانه موقع ور نکړل شي چه دافغانستان د مملکت ټول قسمت یا کومه برخه اشغال کړي او یادعسکري مقصد دپاره ځمونږ دمحبوب مملکت دخاورې یا هواڅخه استفاده وکړي اویادجنګ په دوران کښې ځمونږ نه کوم امتیاز وغواړي اوداقطعاً لازمه نه ګڼو چه ځمونږ حکومت کوم خارجي دولت سره داسې کومه نوې معاهده وکړي چه ځمونږ دمملکت دبیطرفۍ دسیاست اخلال وکړي . اوهمدغسې هیڅ یوحکومت ته په هیڅ صورت اوهیڅ ډول پلمه اوبهانه موقع اواجازه نه ورکول کیږي اونه به ورکړل شي چه کوم ډیروډوکي حق ځمونږ دهغه حقوقو څخه چه دافغانستان په معاهداتو کښې اودبین الملل په حقوقو کښې دیومستقل مملکت دپاره چه افغانستان هم دهغه مستقلو ممالکو ځنې یو مستقل مملکت دی ټاکل شوي دي تصرفات اومداخله وکړي .

بر سیره په دې افغانستان حق درلوداوحق لري اوخپل داحق به محفوظ وساتي چه دهر مملکت سره چه وغواړي خپل سیاسي روابط وساتي اوپه آینده کښې هم خپل سیاسي روابط قایم کړي . مونږ دافغانستان دملت نمایندګان دهغه اختیاراتو په موجب چه خپل د موکلینو له خوائی لرو په دغه پورتنی خط مشی قطعي اوحتمي فیصله کوو .

دافغانستان ملت هیڅکله دخارجه حکومتو دبارلاندې نه دی تللی اولاړ به نشي ، افغانستان مدام په آزادۍ ژوند کړی اوپه آینده کښې به هم آزاد اومستقل ژوند وکړي .

دافغانستان ملت بعون الله تعالی متحداً حاضر دی چه خپل حقوق دټولومادي اومعنوي قواؤ سره تر توئیدلود آخره قطره دخپل وینې محافظه کړي اوپه شرف ژوندون اوحیات وکړي . »

❀ ❀ ❀

دمصوبې تر لوستلو وروسته والاحضرت صدر اعظم صاحب دحکومت دعزم په شاوخوا کښې چه دملت د آرزوګانو دانجامولودپاره داعلیحضرت غازي محمد نادرشاه شهید دحکومت له ابتدا څخه دحکومت داجرا آتومداردی اوآینده به هم تل دغسې وي یوه وینا ایراد کړه ، ترهغه وروسته فضیلت مآب د چارباغ حضرت صاحب ددغې مصوبې په تائید کې یوه وینا وکړه اوپه هغه کې ئې دافغانستان دملت ټینګ عزم : چه دخپل استقلال اوحقوقو اودپاك دین اودې اسلامي خاورې د ساتلو د پاره ئې لري ، څرګند کې ، او هم ئې د حکومت دخیر غوښتنې او وینټوب اوکاغتوب ( کیاست ) څخه اوداچه ملت پردې خپل عادل پاچا او دیندار حکومت باندې بشپړ اعتماد او ویسا لري ، د حرارته ډك او تاوده بیا نونه ایراد کړل .

وروسته ع ، ج والا حضرت غازي وزیر صاحب حربیه د جنوبي خواد قبیلو د وکیل په توګه دجنوبي داوسېدنکو له احساساتو او داچه دوی دضرورت پروخت بیله هیڅ مادي مرستې غوښتلو څخه په سراو مال اوځانو دوطن دفاع از داسلام د مقدس دین او دافغانستان د اسلامي حکومت د ساتنې دمقدسې وظیفې د انجام دپاره حاضر او تکړه ولاړدي ، ترجماني و کړه .

او خپله وینا ئې په دې جمله سره پای ته ورسوله : ـ

« موږ به پرې نه ږدو ، چه هیڅ یو پردی سړی دی زموږ په مملکت کی پل کښیږدی او دا یا که خاوره دی د خپلونا پاکو مقصد و د پر مخ بیو لو د پاره وسیله جوړه کی »

د نو موړی والا حضرت ددې تودې وینا په تعقیب او تائید کی چه د حاضر ینوله خوا په وارو وارو چکچکو سره استقبال کړه شوه فضیلت ماب د ګیان ملا صاحب چه دجنوبی خوا د وکیلانو او علماؤ څخه دی . د افغانستان د ټول ملت او په تېره بیاد سمت جنوبی د قبیلو ټینګ عزم او خلل نه منونکې اراده ئې چه دوطن د حقوقو او حدودوساتلو او د دین دخوندی کولو او د افغانستان د صحیح اسلامی حکومت د اطاعت د پاره ئې کړې دی ، یوه وینااو کړه او خپله ویناﺋی دملی ژبی په پښتنی زیږ وجملو سره د اتفاق او یو والی د تو صیې په شاؤ خوا کی ختمه کړه ، تر هغه وروسته څو تنو نورو وکیلانو هم دغه د حرارته ډك احساسات چه ټو ل د لوئی جرګې د تصویباتو په اجرا کولو کی د ټول ملت پر اراده باندی مبنی وه څرګند کړل.

په پای کی والا حضرت اشرف صدر اعظم صاحب د جرګې ددوهم رئیس په حیث د جرګی د موفقانه ختم ، اعلام کی او د خپلی وینا په ترڅ کی ئې ارشاد و فرمایه چه د ا تصویبونه یوازی د کاغذ پر مخ نه دی بلکه باید چه دهر پښتانه په سینه کی ثبت وی او هر سړی په هرځای کی او په هر شغل او کسب کی چه دی دهغه د انجا مولو د پاره تل ، او په تېره بیا په دې نازك وخت او دشوروشر دوره کی دزړه له کومی دی حاضر او تکره اوسی او و دی پوهیږی چه د دغو تصویبو د انجامولو مسئولیت یوازی د حکومت پر اوزه نه د ی ، بلکه هر سړی په هغه کی برخه لر ی او باید چه تر ټو لو د مخه نفاق ا و بېلتون د خپل منځ څخه ورك کو ، او هغه څوك چه د مملکت د آرا مۍ او خیراو ښېګڼو په نسبت ناوړه ارا ده لر ی ، موقع دی ور نکړه سی چه زموږ په منځ کی نفاق او فتور را ګډ کی ، والا حضرت خپله وینا په دی لاندینۍ جمله ختمه کړه : ـ

« لوی څښتن ( ج ) دی وموږ اوتاسی ته توفیق را کی چه داخپل تصو یبات عملی کو »

په دې ډول دالو جرګه د عقرب (۱۰) پر درو بجو او (۲۵) دقیقو باندی په داسی حال کی چه ددې لوئی ټولنی له اجتماع څخه په یوه دهیجانه ډ که فضا کی، چه ددین ، وطن، آزادی اوملی ناموس دساتنی دپاره دملت ټینګه او کلکه اویوه اراده ښکاره کیدله موفقانه ختمه شوه.

❀ ❀ ❀

## د کابل دراډیو پرانیستل

د ۱۳۲۰ ش ، کال د حمل په اوله ورځ ع ، ج ، والاحضرت سردار محمد نعیم خا ن د معارف وزیر او د لوی صدارت معاون اوج صلاح الدینخان د مطبوعاتو مستقل ر ئیس په (۶) بجو پس له ما پښینه «یکه توت » ته ئې تشر یف وړی او هلته ئې د پست او تلګر ا ف

وزارت د معین او د نورو مامورینوله پلوه په ډېر ښه شان پذیرائی وشوه ، والاحضرت افخم پس دود انیو او ماشینو له کتنی ، او د پست او ټلگراف له اجرا آتو څخه د رضا مندۍ د ښکا ره کو لو په شپږ نیمی بجې په استوډیو پرو گر ام کښی پس د څو آیتو لو ستو نه ع ، ج و الاحضرت د معارف وز یر صاحب په ملی ژبه خپل افتتا حیه و ینا شروع کړ ه د والاحضرت دوینا د خلاصید لو نه وروسته ج: صلاح الدینخان د مطبوعاتو مستقل رئیس د کابل راډ یو په شاو خوا کښی ډېر ه ښه مفصله بیانیه وکړه. دغه‌دی دوالاحضرت وینا اودج دمطبوعاتو رئیس بیانیه د ښاغلو قارئینو د معلوماتو له پاره لا ندی لیکو :

❀ ❀ ❀

# دوالاحضرت دصدارت عظمی معاون

## افتتاحیه وینا

دلوئ خدای په نامه ، اوداعلیحضرت همایونی دروغتیا ، اونښکیالی پښتون ملت د سعادت په غوښتنه د کابل دراډیو منځنۍ څپه افتتا ح کو م .

گرانو پښتنواورویدونکو دې ته اړنه یم چه دراډیو داهمیت بیان وکم ، ځکه تا سی ټو ل پوهیږی ، چه په اوسنۍ زمانه کی ، راډیو دژوندون دورځنیوضروریاتوڅخه ده ، او ملتوا و حکومتوته ډول ډول وظایف پرځای کوی .

مگرداعلیحضرت دحکومت لوی مطلب په دې موسسه کی دادی، چه‌دمملکت‌په‌اصلاحاتو کی یو گړندی پل دخلقودروزنی اوپالنی په لارکی کیږدی . په دی وروسته کلوکی زموږ معارفو لوئی لوئی نتیجې او گټې ښکاره کړی دی . چه موږته درونې راتلو نکی ژ وند ز یر ی را کوی مگرنه ښائی چه موږ په دی سکته وکو ، اودهغو سړوله پالنی څخه سترگی پټی کو ، چه دوی دمکتبوله زد کړی څخه محروم پاته شوی ، او پا خه خلق د ی . و لی چه د غه خلق زموږ دملت یوه لو برخه ده .

په دې مقصد ، نوداعلیحضرت حکومت ، دراډیو استوونکی دستگاه تا سیس کی ، او د فنی شرایطوسره سم ئی ، لمړی پلا منځنۍ څپه وټاکله .

زموږ راډیو عرفانی ده ، دافکارو دروزنی اود قوم دښوو نی او پا لنی د پار ه د ه ، دبز گرانواودکلو داصلاح دپاره ده .

د بی کاری دلیری کول ، او د زیار او کار د خیرولو د پاره ده .

دسودا گرواوتجارت دپاره گټوره ، اودوطنی مصنوعاتو دترویج‌دپاره ده .

دکسب کارو ، اودلاسی اوعصری حرفودښوونی دپاره ده .

دکورنیو داصلاح دپاره ده .

دملي ژبې دخپرلو اوډېرولو دپاره ده .

ددې دپاره ده ، چه موږ دپښتون پخواني ملت ، پخپل روڼ تاريخ اومفاخروپوه شو .

ددې دپاره ده ، چه دانتگيالي قوم په ديني اواخلاقي نصايحوله عيش پرستئ او اخلاقي ضعف څخه ، ليري شي !

ددې دپاره ده ، چه تاسې نوي خبرونه ، اوځني تفريحي پروگرامونه واورئ زه له هغو خلقوڅخه چه دراډيو ترزغ لوډونكو باندې راټوليږي ، دزړه له كومي داخواهش كوم ، چه دزړه په غوږئي واوري ، اوعمل په وكي .

هغه خلق چه څه وايي ، يائي ليكي ، هيله ځني كوم ، چه دوئ هم ، دخپلواروېدونكو پوهنې اواستعدادته، پخپلووېناو، اوليكلوكي وگوري .

دملت ټول زاړه اوزلمي، بنائي چه پهدې وپوهيږي چهزموږوطن ذلوی خدای په اراده ، اودوطن غوښتونكي پوه پاچا ترمشرتوب لاندې ، دلوړتيا پرلارځي ، اوخپلو مدني او اخلاقي لوړو پوړوته رسيږي .

نوزموږ دپښتنو ملت ، دسرو وظيفه دغه ده چه تل ورسره ملگری اومرستې يو .

❀ ❀ ❀

## دجلالتمآب دمطبوعاتو دمستقل

### رئيس وينا

گرانو اوريدنكو ! لكه چه اوس مووارورېده ، والاحضرت سردار محمدنعيم خان دصدارت عظمی معاون اودمعارفو وزير دراډيو منځني څپهوېرانيتله . اولكه چه موصوف والاحضرت (چهددې موسسې حامي دی ) ووېل ، ددې دستگاه اصلي غرض ملي تعليم اوتربيه ده او زموږ معارف غوښتونكي اووطن دوست ټولواك اعليحضرت، ددغهغرض دپاره دهغېدتاسيسولو امر فرمايلي اوموږتهئي ديوداسي پروگرام هدايت راكړی دی چهلهيوه مخه دشاهانهملت دافكارود روزنی دپاره وی او موږ هم دشاهانه ارشاداتو په تاسې ، او دصدارت عظمی دلوړ مقام دنظر يا تو اودوالاحضرت معاونصاحب موصوف دنظرياتوسره سم خپل ټوله تعليمياوتفريحي پروگرامونه دملت پر استعداد تماً كلي دی او كوښښ مو كړی دی اوكوئي چه ټوله خپروني ددوی دذوق اوواك سره وړوی . داموسسه مركبه ده له :-

۱ : ـ دراډيودخپرونومديريت ، چه دمطبوعاتودمستقلرياست، دنشرياتوپه عمومي مديريت پورې تړلي اوپردوو برخوويشلي دی :

( الف ) دصحنی ټك : چه يومعاون اومشاور ، صحنه آراء ويناكونكي، ممثلين، اركسترا اونوری دموزيك ټولگۍ لری .

( ب ) کلوب : ددې لاندینې لسو کمیسیونو څخه جوړشوی دی : ملي ژبه ، دهاتي، ادبي کرهنه فلاحت ، دروغتیا ساتنه ، د کورچاري ، تاریخ ، فو کلور ، علمي ، فني ، ر و ز نی ، اجتماعي اوموسیقي .

ددې کلوب د کمیسیونو ټول اعضاء ( غړی ) چه دمر کز لیکوال دی اوپه فخری ډول خدمت کوي ، ټوله په هفته کي یو ځلا حاضریږی اوپه نورو ورځو کي دوڼحي دوه کمیسیونه پخپل وار راټولیږی اوځپل مضامین جوړو ی او سره گو ر ی ئی . دا کلوب هم دنشر یاتو داداری په ډول ، دمطبوعاتو په مستقل ریاست پورې تړلی دی .

۲ ـ دتکنیك عمومي مدیریت، چه‌یو عمومي مدیر ، یومعاون اوڅوتنه انجینر ان لری، اوپه نورو ولا یاتو اواعلی حکومتو کښې هم ځانگی شته، دپست، ټیلگر اف اوټیلفون په وزارت پور ی تړلی دی . گوا کی ددې موسسي دنشر یاتو چاری دمطبو عاتو په مستقل ریاست اړه لر ی او تکنیکي ئی دپست، ټلیگراف اوټیلفون وزارت اداره کوی .

په سنه (١٣١٤) کی سم داعلیحضرت همایو نی دلار ښو ونی سره دوز یرانو لوړ مجلس (٣١٤١٥) یونډ سترلنگ (یوملیون او٦٦٥ زره افغانۍ ) دمنځنی څپی دیو ماشین درانیو لو دپاره چه ددا خل دپاره نشر یات اوخپرونی کوی ، منظور کړه ، وروسته دپست اوټلگراف وزارت د(ټلیفون کن) کمپنۍ سره خبری ونښلولې اودرانیولو تړون ئی دع ، ج ، ا ، انښا ن عبدالمجید خان دافغان ملی بانك مشر (اوسني وزیر اقتصاد ملی)چه دحکومتي رانیولو مامورو، اوددغه شر کت ترمینځ په برلن کی لاس لیك کړه شو .

په ۱۳۱۷ کال کی ع ، عطاءالله خان دراډیو پښتون متخصص او روپاته ولاړ، په‌هغو ورځو په کابل کی دراډیو یوه فني اداره اوهم تکنیکي کورس چه (٦٥) زده کونکی لری، جوړ کړه شو، اودبرو ډ کاست دمر کز دودانۍ کار، دټلگر اف دلوی استونکي ماشین له څنگه په «یکه توت» کی، اودمر کزی ستوډیو کارئی په باغ عمومی کی دلوئی پوستخانې له اړ خه اوهم ۱۵ نوری ودانۍ دآخذه ماشینو دپاره په ولا یاتو اولویو حکومتو کی شروع سو، د بلی خوا دغه شر کت له قرار داده سره سم، دسامان په‌رالیږلو پیل‌وکی. اود۱۳۱۸ کال په‌منځ دودانیو اوسامان رسیدلو کار، ښه پرمخ ولاړی او دماشینو درولو وخت راغی ؛ او داروپا داوسنی جنگ دمشکلا تو سره بیا هم دغه شر کت خپل کار کو نکی پر خپل وخت کا بل ته راورسولای شوای . د۱۳۱۷ دعقر ب په میاشت کی دتړلو کار ، ونښلول شو اوپه (۷) میاشتی تمام شو، لکه چه د(١٣١٩) داسد دمیاشتی له نیمی څخه دغه دستگاه خپلی‌ازمویښتی خپرونی شروع کړی .

داستو نکی ماشین مر کزی سټیشن د کابل شمال مشر ق وخو ا ته پر (٥) کیلو متره

د «یکه توت» د بې سیم ټلگراف د لوی سټېشن له څنگه دی. دا سټېشن، سل متره لوړی اهرامی شکل دوې د آنتن خادې لری، چه داخا دې په مځکه پورې ندی نښتي بلکه پر «انسلېټرو» ولاړی دی دا سټېشن ۵ «سټېج» لری او د کرسټل په مرسته ئی فریکشن پیدا کېږی.

ددې دستگاه لوی څراغونه په مقطرو اوبو سړېږی، او د سټېشن د څپې ریزونانس ئی له (۲۶۰) څخه تر (۴۹۰) متره پورې ټاکل شوی دی، خو اوس داڅپې پردرو، دستو ټاکل شوی دی.

امړی دسته ئی (۹ر۲۸۴ متره =۱۰۱۳ کیلو سائکل) دوهمه دسته ئی (۲ر۳۷۲ متره =۸۰۶ کیلو سائکل) او دریمه دسته ئی (۱ر۴۴۵ متره =۶۷۴ کیلو سائکل) دی. که څه هم هره څپه ئی د څه وخت دپاره اټکلو له شوه، لیکن ددې دپاره چه د گاونډی سټېشنو سره ونښلی، سمدلاسه مود (۱ر۴۴۵ متره = ۶۷۴) کیلو سائکل څپه ټاکلی او پر کار شویده، او د «های ټنشن» دپاره یو دیکټفائر، چه (۱۲۰۰۰) ولټ سم جریان ورکوی، شته.

او دلویو څراغونه «کټو» د تودولو دپاره ئی دا سی (موتر جنریټرونه) چه (۲۰) ولټ او (۴۰۳) امپېره قوه لری، ورسره دی او په څنو برخو کی چه (موتر جنریټر) او پمپ او اوبه سره ونکی چه گرزی، که چېری ناڅا په نقص ورپېښ سی، نو به د هغه بل فالتو ډول څخه چه هلته شته کار واخیستل سی دا سټېشن د کابل د (انتر فیلتف) له جریانه څخه قوه مومندی او هم د ضرورت دپاره یو بل د ډیزل ماشین چه (۱۸۰) آسه قوه لری، د سټېشن لـه څنگه ورته ساتلی شوی دی.

زموږ د مرکز سټېشن (۲۰) جریبه مځکه نیولی ده، او داودانی، له کانگریټ څخه د دستگاه د فنی احتیاجاتو سره سمه جوړه شویده، پرته له دې د پروگرامو داجرا دپاره د پست، ټېلگراف دوزارت له څنگه یو «سټوډیو» هم په (۶) جریبه مځکه کی جوړ شوی دی، دا سټوډیو ډېری ودانۍ لری چه هره ودانی د یوی وظیفی دپاره بېله شوېده، یوازې د پروگرام داجرا د پاره دوه اطاقونه لری، چه یو لوی تالار ئی د ډرامو بانډو کنسرټ دی، او دا بل اطاق ئی لږ څه کوچنی دی، او دوینا وا وسپکو موزیکو دپاره بېل شویدی، د گرامافون ټکلی هم بېکښې ږغیږی، دریمه ودانی ئی د کنترول کېچنۍ کوټه ده چه آواز ته گوری او دلوړونکو ماشینو تر دوران و روسته د کیبل په مرسته د مرکزی سټېشن ته ځی، د کنترولو سړی دادواړی ودانۍ د کړکینو له خوا وینی، او په اشاره سره یو د بله پوهیناوو او پروگرامو سره پوهولای شی د سټوډیو د «اپراتو» د چلولو دپاره. د ښار د عمومی برق څخه قوه اخیستله کېږی، پر دې سر بېره یو د پټرولو برق زیږونکی ماشین هم د سټوډیو په یوه کوټه کی ساتلی د رول شوی دی، چه د ضرورت پر وخت به کار څخنی اخیستل کېږی.

بېله دې ودانۍ درې نورې کوټې هم په سټوډیو پورې جوړې شویدی چه یوه ئی د راډیو د تکنیکی د عمومی مدیریت او د هغه د دفتر کوټه ده، بله ئې د تحویلۍ کوټه ده، او یو د ترمیم لابراتوار

دراډیو دمدیریت دمرکز او ولایاتو ددستگاهو دپاره لری چه اوس اجراآت پکښ کیږی ؛
ددغو ودانیو له مخه یوه بله ودانی دراډیو دعمومی خپرونو مدیریت دپاره جوړه شوې ده .

دراډیو کلوب چه دعصری ودانیو یونوی شکل ودانی ده هم په «حضوری چمن» کی دی
چه دوه پوړه یوه صحنه (غولۍ) یودموزیك ستوډیو لری او دښکلی باغ سره دراډیو دو دانیو
دریمه احاطه ده ، لکه چه اوس مووویل پر ته له دې دراډیودمرکزی ستیشن څخه په نایب الحکومگیو
اعلی حکومتیو ، اوځنو لویو حکومتیو کی (۱۰) دآخذه ماشینونه ، اوهم ډېر (لوډ زغی) راوړی
شویدی چه له دغو څخه اوس سمد لاسه (۲۰) دانی د کابل په (۲۰) ځایو کښ درول شوی اوږ غیږی.

دولایاتو ، اعلی حکومتیو اولویو حکومتیو مرکزی ستیشنونه یوه یوه آخذه ده چه د کابل
له مرکزه اخیستنه کوی وروسته ئی د« املیفائر » په مرسته زغ لوډ یږی اوشاوخوا خپر یږی .

دمرکز اواطرافو ټوله دودانۍ مصارف تر اوسه یوملیون افغانۍ ته رسیږی چه د دستگاه
درانیولو دقیمت سره (دوه ملیونه) او (٦٦٥) زره افغانۍ سی ، البته هغه مصارف
اومعاشونه چه هر کال کیږی اوهم هغه خریداری او رانیونی چه وروسته به کیږی
له دې څخه وتلی دی، لکه چه دپست، تیلگراف وزارت یو پروگرام جوړ کړیدی کال په کال
به ددغو دستگاهونو څخه څو ، نوی دستگاهونه رانیول شوی ، اودنقشی سره سم به د مملکت
په نورو برخو کی ودرولی شی ، اوکه خدای کول په (٥) کاله به هره علاقه د اری کښ
یوه یوه محلی راډیووی ، دبلی خوا دپست اوتلگراف وزارت (۸۰۰) انفرادی راډیو گانی
برابری کړیدی چه په خوراهوسائی ووگړوته په کمبت ورکولی کیږی .

❀ ❀ ❀

## دنبی (ص) دمیلاد احترام

دمولودشریف ورځ هغه لویه ورځ ده، چه ټول مسلمانان وربا ندی نازیږی او افتخار په کوی.
داورځ په ظاهره چه وو ینو دنوروورځو څه فرق نلری منگر که یا کی ستر گی و غوږیږی ددې
ورځی دروښان لمر پلوشې دنورو ورځو دپلوشونه په یوه خصوصی رنها بېلیږی اوامتیاز پیدا کوی.

لکه څنگه چه داعلیحضرت شهید سعید دحکومت دابتداء څخه تر اوسه پوری هر کال
دربیع الاول په ۱۲ چه دپاك رسول محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دمولودبختوره ورځ ده ،
ددې بختوری ورځی په مناسبت په سلامخانه کښ لوی مجلس جوړیږی سږ کال هم د نورو
تیروکلونو په شان دپنجشنبې په ورځ په ۲۱ دحمل او۱۲ دربیع الاول دمحترموعلماؤ او عالی رتبه
مامورینو په سلامخانه کښ مجلس ترتیبات نیول شوی اوددې لوی اومحترمی ورځی داحترام د پاره
یو مجلس منعقد شو .

دسهار په ۸ بجی ج ، ع ، ج ، ا ، ا ، نبیان وا لاحضرت افخم صدر اعظم صاحب هم

د پښتانه د امید گل

والاحضرت پښتون شهزاده محمد نادر جان

ددې مجلس دشرکت دپاره تشریف راوړی و ، لمړی دعلماؤ څخه یوعالم دمولودشریف د دې لوئی اوبختوری مبارکی ورځی په اهمیت او دپاك رسول صلی الله علیه و سلم د لوړ شخصیت په خواوشا کښې بیان وکړ ، له دېنه وروسته دقرآن کریم څو آیتونه ولوستل شو و .

دمجلس په خاتمه کښې والا حضرت افخم صدراعظم صاحب داسلام دمقدس دین د تقدس په خواوشا کښې یولنډ اوجامع بیان وکړ او دملوکانه داشرف ذات او دافغانستان د سعادت دپاره ئې دعا وکړه ، اودحاضرینو څخه دهغوی ددعا تائیدوکړشو ، اومجلس پایته ورسید .

❀ ❀ ❀

# دشهید اعلیحضرت په مزار

## دګلو ایښودل

په (۳۰) دحمل ع ، ج شاتینو د فرانسه د دولت نوی وزیر مختار دما پښین نه وړاندې په (۱۰) بجی د اعلیحضرت شهید په مبارك مزار دګلو ګیډۍ کښېښودې -

❀ ❀ ❀

همدغه شان عالیقدر جلالتمآب (دری قوس) دجماهیر متحدهٔ امریکا وزیر مختار په(۳۱) د ثور داعلیحضرت شهید په مبارك مزار باندې ګلونه کښېښول .

❀ ❀ ❀

اوپه(۳) دعقرب دسه شنبې په ورځ دطبی فاکولتې دافتتاح په مناسبت چه دغازی اعلیحضرت شهید محمد نادر شاه دمعارف پرورانه مؤسساتو څخه ده لکه دنورو تیرو کلو په شان ددغه فاکولتی اوطبی مکتب او دواسازی دمکتب متعلمین او اداری او تعلیمی هیئت داعلیحضرت شهید مبارك مزارته لاړل اودخپلو خالصانه دعاګانو سره ئې د ګلانو ګیډۍ دده په خاوره کښېښودل شوه .

❀ ❀ ❀

# په شاهی کورنۍ کښې یو نوی ستوری

د جوزا پر (٤) دسهار پر (۹) بجی زموږ ګران او محبوب هولواك ته لوی ښښتن یو بل زوی ورکړ د خدای په لطف او مهربانۍ د اعلیحضرت هما یونی دا ذریم زوی او پنځم اولاددی ، موږ ددې نوی شهزاده تولد دافغانستان د پاره یوبل نوی د سعادت ستوری ګڼلی د لوی ښښتنه التجا کو و چه دالوړ اقبال نوی شهزاده پخپله ساتنه وساتی ، او د شاهانه ذات او ددوی د عائلې او شریف ملت ، تل سعادت او نېکمرغی په نصیب کی .

## د ملی شورا ددوهم کال د څلورمی دورې افتتاح

پر پنځنیم بجو د جوزا په ۲۴ په شاهی سلامخانه کښی د ملی شورا ددوهم کال دڅلورمی دورې د افتتاح په مناسبت یولوی مجلس وشو ، ددې مجلس د پاره خورا لوړ ترتیبات او مراسم نیولی شوی وه په دې مجلس کښی ج ، ع ، ج ، ا ، ا نبیان والا حضرت سردار محمد هاشم خان صدر اعظم او نور و محترمووزیر نو او دملی شورا او مجلس اعیان ، جمعیت العلماءمعظم ا عضا او ملکی، عسکری لوړ مامور ینو شمولیت در لود ، دملوکانه اشرف ذات موکب هم تشریف راوړی او اعلیحضرت همایونی پخپله لوړه وینا سره د ملی شورا ددوهم کال څلورمه دوره افتتاح و فرمایله د ملوکانه اشرف ذات تروینا وروسته ع ، ج عبدالاحد خان د ملی شورا رئیس او وروسته ج ، ع ، ج ا ، ا نبیان والا حضرت صدر اعظم صاحب هم وینااوی ایراد کړې او مجلس پر (۶) بجی ختم شو .

❀ ❀ ❀

## دخپلواکۍ د۲۳ کال جشن

د استقلال ۲۳ کال هم لکه د تیر و کلو په ډول ښه لوړ ترتیبات نیو لی شوی ا و د حکومت او ملت له خوائې په خورا مینه او تاوده ډول استقبال وشو .

د سنبلې په لمړۍ ورځ چه سم د ټا کلی پروگرام سره د جشن افتتاحی مراسم کیدل لوړملکی مامورین اوعسکری منصبداران ، دملی شورا ، او مجلس اعیان اعضاء او نور مشران او سپین زیری چه د مخه د وزارت دربار له خواد کار ټو په ذریعه را غوښتلی شوی و و په شاهی سلامخانه کښی حاضروو ، او پر ټا کلی وخت باندی د اعلیحضرت همایونی موکب تشریف راوړ او د تشریفاتی ټولګۍ عسکر او موز یك او د ټولو حاضر ینوله خوا د بادشاهی سلام او احترام و کړ شو .

او پر (۸ ) بجې داعلیحضرت معظم همایونی په مؤثره او لوړه ویناسره چه د خپورزغ ( نشرالصوت) په مرسته داستقلال د(۲۳) کال جشن افتتاح کړشو ، ټولووګړو دخپل ګران ټولواك غراوینا پهخورامینه اومسرت وارویدله.

وروسته اعلیحضرت همایونی دټولو حاضرینو په ملګری ی دحضو ری چمن دعسکردتیر یدو دکتلو دپاره تشر یف یووی اوټول عسکر په خورا انتظام تیر شوو دادبېنتا نه د غیو ر عسکر دتیریدلومنظره دډیری خوښۍ اومسرت وړوه ، دټولووګړو اوداستقلال دمینانو پهزړوکی ئې ژوری اغېزې اوتأثرات وکړه .

لنډې داچه تر(۶) ورځو پوری سم دټا کلی پروګرام سره ډول ډول لوبی او مسا بقې ،

دعسکریانو دتیریدو رسم دخپلواکی دجشن په ورځ

پښتانه ورزش کاران دخپلواکی دجشن دسپوت
په ننداره کښی .

دخپلواکۍ د درویشتم کال دجشن دلمړۍ
ورځې ننداره کوونکي په حضوري چمن کښې

دآس څغلو قهرمان

دآس څغلو مسابقه

# د ۱۳۲۰ کال نندارتون

همایونی اعلیحضرت او والاحضرت اشرف صدراعظم په نندارتون کښی

ع ج ،۱۰۱ نښان غازی والا حضرت د حرب وزیر په نندارتون کښی

همایونی اعلیحضرت په نندارتون کښی

یوازنی صنایع

هوائی فوټو - دخپلواکی
دجشن د رسم گذشت
منظره

په ننداریتون کښی د قره قلی پوستکو کی

د موزیک د مکتب یوه ټولی متعلمین

ملي اتنونه ، فټبال ، هاکی ، پهلواني اونور ښه ښه نمايشونه وشوه او داملي اختر په خورا خوښۍ اومسرت تېر شو .

❀ ❀ ❀

# داعليحضرت همايوني په حضور

## دملي شورا دوکيلا نو تشرف

دملي شورا د کالنی تعطيل پهمناسبت، دملي‌شورا وکيلان دع ، ج عبدالاحدخان دملي شورا رئيس په مشرتوب سره داعليحضرت همايوني دتشرف دپاره ددلګشا ماڼۍته ورغلل، پرمقرره وخت باندې ج،ع،ج،ا،ا،انبان والاحضرت صدراعظم صاحب اونيم ساعت وروسته اعليحضرت اشرف همايوني ددلګشا ماڼۍ ته تشريف وروړی .

اعليحضرت خورا لوړ اوقيمت‌لرونکی نصيحتونه‌دملت اووطن دخدمت کولو په‌خصوص کی ارشاد وفرمايلو اوداعليحضرت همايوني دلوړو فرما يشونو په جواب کی ۳ تنوو کيلا نو دخپلو ملګرو په کفالت، په خپلوويناؤکی دګران هېوادسره مينه اودوطن غوښتلو مراتب عرض اوڅرګند کړه .

وروسته ج ، ع ، ج ، ا ، انبان والا حضرت صدر اعظم صاحب د ملي شو را دصميما نه ملګرۍ څخه تشکر وکی ؛ اووروسته ع ، ج دملي شورا رئيس، داعليحضرت همايوني حضورته دملي شورا تشکر عرض کی اومجلس ختم شو .

❀ ❀ ❀

# داعليحضرت محمدظاهر شاه دميلاد

## اته ويشتم کال

دميزان۲۲ ورځ چه دافغا نستان د ګران‌اومحبوب پاچا اعليحضرت دميلادورځ وه ديخوا په دوددماپښين‌نه وړاندی‌داسو بجوڅخه تردوو بجو پوری دکوردیپلوماتيك‌هيئت‌اوددوونيمو بجو څخه تردرې نيمو بجو د ماپښين نه وروسته لښکری او کشو ری عالی رتبه مامو رين د کتاب دامضا کو لو اوداعليحضرت همايو ني دتو لد دورځی دتبريك دپاره ددلګشا ماڼۍ ته‌تللی و و .

❀ ❀ ❀

# ۲۳دميزان ـ يا ـ دوطن

## دنجات نېکمرغه ورځ

دميزان ۲۳ ورځ چه داورځ دافغانستان په ملت ډېره ګرانه اوداسی مسعوده او ميمو نه

اوتاریخی ورځ ده چه دافغانستان ملت داورځ دخپلوملی اخترو په شان بختوره او قدرمنه گڼی ځکه چه ددې بختوری ورځی قدراواهمیت دافغانستان ټول ملت ته ثابت اومعلوم دی چه په دی ورځ دوطن دافق توری پردې په نیك مرغۍ اوسعادت بدلی شوی اوددې محیط څخه نفاق او وینوتویول دوطن دصحیحو اخلاقو یعنی اعلیحضرت غازی محمدنادرشاه شهید رحمت‌الله علیه اودهغه دفدا کارووروڼو په قوی متو اوصحیح تدابیرو له منځه ورك شول .

له دې کبله دافغانستان قدر پیژندونکی ملت ددغه ورځی اودمملکت دصالحو ننګیالو ځامنو دهغه خدمتونو په یادگار کښی چه هیڅکله به ئې داملت هیر نه کړی په دې بختور ورځ داقدردان ملت جشن کوی اوپه دغه دخوشحالیو اوسعادت څخه ډکو ورځوټول رسمی اوملی دوائر تړلی وی او دغه ورځ ټول ملت دخپل لوی خدای په شکر اودوطن دمنجی اعلیحضرت شهید رحمة الله علیه په امتنان تیره وی ، سږ کال هم لکه دنوروتیروشوو کلونو په شان په ۲۳ دمیزان ټول رسمی او ملی دوائر که په مرکز کښی وواو که په ولایاتو کښی تعطیل وواوپه ډیر صمیمت او احترام خلقو خپل خالصانه ادعیات داستقلال دمحصل اودافغانستان دنجات ورکونکی پرفتوح روح ته‌تقدیمول اوډ خپل ځلمی پاچادبختورسیوری لاندی ئې دخپل مملکت دپاره دپاك خدای څخه ددائمی سعادت اوترقی کول سوالونه کول .

❀ ❀ ❀

## دبې وزلو په باره کښی شاهانه مراحم

لکه‌دنوروکلونوپه شان دافغانستان محبوب پاچاهمایونی اعلیحضرت‌دشاهانه‌وزارت‌دربار په‌توسط د کابل بلدئی ریاست ته یو مکفی مقدار روپۍ د دې د پاره ولیږلې چه مستحقینو ته ئې و ویشی .

❀ ❀ ❀

## دعسکری دافرادو دمعاش تزئید

همایونی اشرف اعلیحضرت تل دملت دبهبودۍ په‌لاره اودمملکت په لوړتیا دخپل شاهانه ذات‌دعسکرو دآسوده حالی‌او هوسائی دپاره مرحمت فرمائلی اوهم‌فرمائی ، لکه‌چه په‌دی کال کښی‌ئې‌دمملکتی بودجې‌داقتضاسره سم یوځه‌روپۍ‌دعسکری افرادو په‌معاش کښی‌تزئید کړې، چه دشاهانه عساکر په‌هوسائی اورفاه په‌خپلوخدمتونو بخت‌وی اودمعاش دکم والی په‌سبب په مشکلاتو اخته نه وی .

## يوه لويه ضايعه

هغه لويه ضايعه دعليا حضرتي معظمې ملکې دافغانستان دمحبوب القلوب او معظم پاچا مور فقدان دی چه ديکشنبي په شپه په ۹ نيمي بجې (۲۳) دقوس د ۵۹ کلو په عمر دخپل پاك خدای درحمت په جوار کښې ځای ونيو .

دا محترمه اومعظمه ملکه دډېر لوی اومحترم شخصيت ميرمنه وه چه تل به ئې دافغانستان لوی او فقيد پاچا اعليحضرت غازي محمدنادرشاه شهيد سره ديوی زړه وری او په وطن مينې ښځې په شان ددې خاوری اواوبو دځامنو دآرامۍ اوآسايش فکر او کوښښ کاوه او په دی لار کښې ئې د خلقو دهوسائې اودبې وزلو په مرسته کښې په خپل مال هيڅ صرفه نه کوله او بې دريغه به ئې خپل شخصی مال دبې وزلو په مرسته اودخلقو په هوسائې کښې لګاوه .

د پښتنو د معنوی مور جنازه

محترمه ملکه داسې مور اوداسې ښه خوی ميرمن وه چه ددې په پاکه غيږ کښې لوړ اوجليل القدر ذات همايونی اعليحضرت ځلمی پاچا روزلی شوی دی اوددې حميده اولوړ اوصاف د فاميلی او کورنۍ دلوړی تربيې څرګنديږی اودشاهانه دودمان دښو اوغورو عناصرو پوره نخښه ده .

ددې معظمې ملکې وفات اوفقدان يو دهغه لويو ضائعاتو څخه و چه ددې ملت ته پېښ شو او ددې ملت داويو ، وړو زړونه ئې ژوبل اوډېر زيات غمجن کړل ، لکه چه ددې خبرو نشر او اوريدلو سره سم دهرچا زړونه دردمن اوخپه شوه اودافغانستان دهرې خوا اوهر ګوټ اودخارجی ممالکو د افغانستان دسفيرانو له خوانه تعزيه نامې دشاهانه مبارك حضورته عرض او تقديم شوې او دفاتحې اخستلو مراسم په ګرد افغانستان کښې په خورا ډېر ښه شان وشو .

# د دنیا واقعات

## ۱۳۲۰

ښاغلی سید قاسم « رشتیا »

هغه څه چه پیش بیني ئې کېدله، په ۱۳۲۰ کال کې نه یوازې داروپا جنګ پای ته ونه رسېد، بلکه د هغه لمن پراخه او شدت ئې ډېر شوی دی - او دسوی اورلمبې ئې له غربه څخه و شرق ته ترلیری شرق او لیری غرب پورې رسېدلی دی .

ګوا کې نوې دنیا او زړه دنیائې ټوله ونیوله او پېدې هله ګله کې دډېرو مملکتو خپلو ا کی له لاسه ووته - او هغه ممالك چه خپله بې طرفي ئې ساتلې ده ، هم ددې جهان سو ځوونکی جنګ دغېرمستقیمو صدماتو څخه لږ و ډېر متأثر شوی دی او دبین المللی مواصلاتو دقطع کېدو له امله دبین المللی روابط په تېره بیا داقتصادی او عمرانی پلوه دډېرو مشکلاتو سره مخا مخ شول .

اوس ددې نوی کال (۱۳۲۱) په سر کې هم ترکومه ځایه چه موږ دجهان ودې په وینو لړ ند او تور افق ته ګورو - د کوم فوری بهبود امید نه لیدل کیږی - فقط او بس یولوی پاك خدای په خپل لطف او مرحمت او بې چون قدرت کولای شی چه بشریت لدې سو ځوونکی اوره څخه وساتی او دادی چه ټول هغه افراد چه له خپل نوع سره دوستی لری او هغه ملل چه امن ئې خوښ وی هم دغه دعا کوی . دمخه تر هغه چه زه ددنیاله غمه ډك واقعات چه پېدې کال کې پېښ شوی دی ، ولیکم ، لمړی باید دخپل ګران وطن دخارجی سیاست ګذارشات او بین المللی وضعیت په لنډه طور بیان کړم :

افغانستان چه ددې جهان سو ځوونکی جنګ له ابتدء څخه دخپلې کاملې بې طرفۍ اعلان کړی و اوددې بې طرفۍ په ساتلو او ادامه کې ئې جداً زیار ویست - په تېر کال کې چه جنګ د شرق ولورته متوجه شو ، دانګلستان او شوروی دولتو دمحور داتباعو اېستل دخپلو یه دول دخپل اطمینان دډېر والی په غرض له افغانستا نه څخه غوښتنه وکړه زموږ متبوعه حکومت تر کافی غور أو مشوری وروسته چه دشورای ملی دصلاحیت دار کمسیون سره وشوه محض دخپل ښه نیت داثبات دپاره دالمانی او ایټالوی مستخدمینو په وتلو چه اکثره دلارو د بندوالی په سبب بیکاره پاته وه رضا شو ، او هغه تبعه ترڅدی دووسووتنو ته دبرطانیې دحکومت په ضمانت محفوظ او سالم وترکیبی ته ورسول شوه . زموږ پوه حکومت دالازم وګڼل چه یوه لویه ملی جرګه دهر ډول ممکنه پیش آمد په مقابل کی دمملکت دخارجی سیاست دثابتولو دپاره راوغواړی او مشوره ور سره وکی - هغه وچه دالو یه جرګه دمملکت دهر ځای او د ملت له انتخاب شو و یو زرتنو

## د دنیا ځینې مهم اشخاص

دوهم جارج د یونان پاچا

امیرالبحر دارلان دفرانسې دبحریه
او داخله ، اوخارجه چارو وزیر ،
اودصدر اعظم معاون

د انگلستان صدر اعظم ،
ونستن ، چرچل

روزولت دامریکاء د متحده ممالکو
د جمهور رئیس

هټلر جنرال رومل د محور دقواو په قیادت وافر یقانه لېږي

مارشال فون براوخیچ ، د آلمان د ځمکنیو قواو پخوانی قوماندان او د شرق د محاذ د یوه اردو او سنې قوماندان

مارشال فون کیتل د آلمان د حرب د ارکانو عمومي رئیس

## د دنیا ځینی مهم اشخاص

ستالین دشوروی اتحادد جمهوریت مشرچه دجگړې دشروع کیدلو وروسته ئې سربیره له صدراعظمی څخه د مدافعې چاری هم پخپله په لاس کی ونیولې

مارشال تیمو شنکو دشوروی دسره لښکر قوماندان په اوکراین کی

وروشیلوف د لیننگراد مدافع

مارشال انتونسکو، درومانیې صدراعظم

# د دنیا ځینی مهم اشخاص

د ایران مخلوع پاچاه اعلیحضرت
رضاه شاه پهلوی

د ایران نوی پاچاه اعلیحضرت
محمد رضاه پهلوی

فیلدمارشال مینرهیم ، دفنلیند
د مدافعې وزیر

لارد بیوربروك ، د انګلستان
دټولو وسلو جوړولو نګران

په شمولیت دعقرب له ۱٤ بیاتر ۱٦ یوری په کابل کی راغونډ شوی، اود کافی غور اومشوري په اثر ئې فیصله کړه چه افغانستان د خپلی بشپړی بې‌طرفی وسیاست ته دوام ورکی او له خپلی خپلواکی، اوټولو ملی حقوقو اوبې طرفی، اوټولی خاوری څخه دهرمتجاوز په مقابل کی په ټولو وسائلو مدافعه وکی . « چه دجرګې دمصو بې متن په دی کالنۍ کی دداخلي وا قعاتو په مقاله کښ درج سوی ده »

دادی نوچه زموږ ګران وطن ددې خپلی لوئی اوښکاره اوقطعی فیصلې لەرویه چەدقومی روحیاتو اوملی عنعناتو اودمملکت دتاریخی اوجغرافیائی محیط له مقتضیاتو سره اوتر ټولو لاتېر دتهذیب اونوع خواهۍ سره موافق‌دی، ترننني ورځی پوری ئې خپله بشپړه بې‌طرفی عملاً اثبات کړی او غواړی چه په آینده کی هم د دغې ملی فیصلې مطابق وخپلی دې رویې ته‌دوام ورکړی .

❀ ❀ ❀

## اوس به ددې کال ددنیا دواقعاتو وخواته ولاړ شو :

د ۱۳۲۰ کال په سر کی جنګ وشرقی اروپاته مخه وکړه‌اوپس له هغه چه دایټالیا جنګ مفاد اوزد شو په بالقان کی دد واړو خوا و سیاسی فعالیتو نه شدید شول، هریوه دخپل‌مفاد دتأمین اودخپل مقابل طرف دزیار عبث کولو دپاره یوه‌سلسله اقدامات شروع کړه .

هغه وچه له‌یوې خوا المان ، بلغاریا دخپلی همکاری، دپاره حاضره کړه او د المان عسکر درومانیې په شان دبلغاریا په خاوره کی هم‌ننه‌وتل اودځان دهمکاری، دپاره‌ئې خپل پیشنهادات ویوګوسلاویاته هم وړاندی کړه ـ اوله‌بلی خوا انګلستان خپل دحرب‌رئیس ارکان او دحرب وزیرو ترکیې ، یونان او یوګوسلاویا ته ولیږل .

په پای کی که‌څه‌هم په‌لمړی سر کی دیوګوسلاویا حکومت دمحور همکاری ومنله ، مګر په هغه مملکت کی‌یو نظامی کودتا پېښ‌شوچه‌دنائب السلطنه‌دعزل‌اودنو بالغ‌شاه دتما کل کېدو باعث‌وګرځېد ـ

مګر الما ن ددې پېښی په‌اثر خپلو عسکروته دیوګوسلاویا او یونان په خاوره کی د مارش امر ورکړ ـ اودحمل په میاشت په‌دې دوومملکتونو کی دسخت جنګ اوربل شو .

یوګوسلاویا له‌دې جهة چه بې‌خبره اوله‌څلورو خواوحملې پر کېدلې په‌یوه هفته کی‌بې دمخه تر هغه چه‌دمتحدینو مرسته ورورسېږی سقوط وکړ ـ مګر یونان مقاومت‌ته اوږه ورکړه او په‌دې وخت کی (۵۰) زره برطانوی عسکر هم ودې ځای‌ته راغله ـ وجګړې ته ئې دوام ورکړ ـ اما په آخر کی تردوو هفتو وروسته دمتحدینو عسکر دیونان د جنوبی بندرو له لاری سره د یونان له حکومته دجهازو په‌ذریعه دکریت‌وجزیرې‌ته ولاړل ـ تردې وروسته المانیانو دکریت په جزیره هم دخپلو پاراشوتی عسکرو هجوم وړ کړ ، څودجوزا په‌لمړنیو ورځو کی داوو ورځو تر جګړې نه پس دیونان اومتحدینو عسکرو کریت هم تخلیه‌کړ ـ اودیونان باچا وقاهرې اوبیا له هغه ځایه ولندن ته ولاړ ـ په‌دې وخت کی په عراق کی، هم یونظامی کودتا پېښ شو ـ هغه داسی و چه انګلیسانو دالمان دپیشرفت په‌سبب دبحرمدیرانې وخواته دهغه قرارداد په‌مطابق چه له عراقه

سره ئې درلود خپله یوه ټولګۍ عسکر ئې دعراق په خاوره کې پیاده کړل ـ مګر ځکه چه د دې عسکرو توقف وځنډېد نودعراق حکومت دبرطانیې وحکومت ته وربه یاد کړه چه سم له قرارداده باید برطانیه خپل عسکر دعراق په خاوره کې تېر کړي اودانه چه په دې ځای کې په غیر محدود صورت پاته سي.

دبرطانیې اوعراق په منځ کې اختلاف دوام وکړ هغه وخت چه دبرطانیه دېر عسکر وبصرې ته راورسېدل درشید علی ګیلانی اودده دنورو ملګرو له خوا یونظامی کودتا پېښ شو (۲۱ د حمل) اونائب السلطنه عزل اواخراج شو ـ اونوی حکومت دبرطانیه ددېرو عسکرو د پیاده کېدو سره خپل عدم موافقت ښکاره کړ ـ ددې خبری په اثر که څه هم دبرطانیه عسکر په بصره کې پیاده شوه . خو بیاهم (دثور ۱۲) تاریخ دحبانیه په نظامی مرکز کښې دانګلیسی اوعراقی قواوتر منځ تصادم پېښ شو څو جنګ سره ونښت اویوه هفته د دوادو خواو په لوپیمانه حربی عملیا تو دوام درلود له یوې خوا برطانوی قواو دبغدادولورته مارش وکړاوله بلی خوا امیرعبدالله پخوانی نائب السلطنه له فلسطینه څخه عسکرغونډ اوجګړی ته ئې هڅه وکړه ـ المانیانوهم خپله همدردی د رشید علی له حکومته سره ښکاره کړه اوسم دستی ئې دویشی له حکومته دسوریې دهوائی میدانو غوښتنه وکړه اوځینی الوتکی ئې وسوریې ته راغلې امادعراق دعسکرو مقاومت دبرطانوی قواودډېر سخت فشار اودهیڅ خارجی مرستی دنه رسېدواوخه دداخلی مشکلاتو په اثر تر دووهفتو اضافه دوام ونه کړ رشید علی (دجوزا ۱۰) تاریخ وطهران ته ولاړ ـ خو بیا وانقره ی او وروسته ایتالیا او المان ته ئې عزیمت وکړ » اود برطانیه عسکر و بغداد او ټول عراق و نیو او امیرعبدالله بیرته نائب السلطنه شو اودانګلیستانه سره دحربی اتحاد ترون وکړ بالمقابل وروسته تر هغه چه ښکاره شوه چه دویشی حکومت والمانیانوته په سوریه کې دهوائی میدانو اونورامتیازات ورکړی دی دانګلیس او آزادوفرانسویانو عسکرو پر سوریه حمله وکړه اوتر شلو ورځو جګړې وروسته فرانسوی قواتسلیم شول اوسوریه دمتحدینو له خوا اشغال اود سوریې او لبنان آزادی دملی جمهوریتو په صورت اعلان شوه .

په هم دې موقع کې دانګلیس عسکرو په شرقی افریقا کې له هری خواتعرض شروع او دحبشه په غرب اوشمال اواری تریا اوسوما کې دبرطانوی اوایتالوی عسکروتر منځ سخته جګړه ونښته په نتیجه کې سره ددې چه ایتالوی عسکرو چه ددباندی سره ئې مواصلاتی لاری قطع شوی وې سخت مقاومت کاوه خو بیاهم انګلیسی قواو ایتالوی ځایونه یو په بل پسې ونیول اودایتالیا آخرینه ټولګۍ عسکر داولشفیت په کوهستان کې دری میاشتی دمحاصرې په حال کې وه ، اوبه آخر کې (دقوس) دمیاشتې په ۹ تسلیم شول . اوهیلاسلاسی دحبشې امپراطور چه دحبشه په خاوره کې له ډېری مدې راهیسې په عملیاتو اخته و بیادحبشه پر تخت کښېناست .

او(ددلوی) په میاشت انګلیستان دده سلطنت دیووالی دقرارداد په موجب په رسمیت و پېژاند .

په لیبیا کې هم دجګړې مدوجزردوام درلود ، وروسته تر هغه چه دمحورعسکر ودالمانی جنرال رومل تر قیادت لاندی برطانوی عسکرچه دیونان دجنګ له مخه تر بنغازی پوری رسیدلې وه . بېرته ئې دمصر تر سرحده پر شاوشړل ( انګلیسانو ددې علت دابللی چه دوی خپل عسکر له دې ځایه څخه ویونان ته لېږلې وه .) بالمقابل انګلیسی قواو دجنرال آ کن لیك تر قیادت لاندی چه وروسته تر هغه چه

جنرال واول دهند په عسکری قوماندانی وټاکل شو ، ده د نږدی شرق د حربی چارووا ګی پخپل لاس کی ونیولې تر شپږ میاشتو تیاری نه پس په داسی حال کی چه تبروك ئې د المانی قواو د محاصرې په حال کی ساتـه د (عقرب په ۲۸) تاریخ ئې حمله شروع کړه ، د ټانکو تر ډېری جګړې وروسته جنرال رومل وپرشا کېدو ته پیل وکړ او برطانوی قوا بیاتر بنغازی بلکه تر اجیدابیا او العقیله یعنی د (سیرت) د دښت تر پایه پرمخ ولاړل مګر د شلوورځو تر وقفی وروسته بیا د محور وعسکر وته مرسته راورسېدله اوددلو په میاشت ئې بیرته برطانوی قوا تر الغزالې پوری پرشا و شړل ـ او دفعتاً په دې منطقه کی دواړی قوې یو د بل ومقابل ته ودرېدلې نو ګوره چه بیا به کومه یوه په حمله کی پیش دستی وکی ـ د دې جنګ په ضمن کی یو د بله لوواقعه په شرقی اروپا کی پېښه شوه چه د هغه دروس او المان جګړه وه چه (د سرطان) په اول تاریخ شروع شوه ددې جګړې علل د دوی یو د بل پر غاړه سرواچوی ، المانیان د شوروی عسکرو تمرکز په شرقی سرحدو باندی د المان او د اروپا د جنوب شرق د نورو مملکتو د تعرض د پاره بللی دی او خپل اقدام ئې د دې حملې د پیش دستی په نامه بنودلی دی بالمقابل روسیان د آلمانه سره د خپلو رشتینو روابطو ټینګوالی بیانوی او د المان حمله یو ناحق تجاوز بولی ـ

په هر صورت ، خو چه د المان او روس په منځ کی جګړه شروع شوه ، انګلیسان سم دستی و شوروی دولت ته خپل اتحاد وړاندی کړ ـ او په داسی حال کی چه د دواړو خوا او لوی قواوی د بحر بالتیك او بحر سیا ترمنځ په ۲۰۰۰ میله یوه جبهه کی سره مخامخ شوی وې د شرقی اروپا دولتو نه له فنلینډه نیولې تر سلواکیې ، رومانیې ، مجارستان او ایټالیا پوری حتی فرانسوی او اسپانیولی رضا کارانو د المانه سره د شوروی پر خاوره یرغل وروړ ـ بالمقابل په خورا بیړه چرچل د روزلت د ملاقات د پاره و بحر اطلس ته سفر وکړ ـ د دواړو زمامدارانو یوه لوړ همکاری نقشه طرح کړه ـ او یوه اساسنامه ئې چه د ملتو او تجارت د آزادی او ددیمو کراسی د راتلونکی حکومت د طرز د آزادی اته نکتې پکښې وې وضع کړه ـ او ضمناً ئې د روسیې سره د مرستی کولو تصمیم وکړ یو هیئت ئې و مسکو ته ددې د پاره ولېږه چه د روسیه احتیاجات وځان ته معلوم کړی ـ او خه چه دې هیئت له انګلیستان او اتازونی څخه غوښتی دی تر ننه پوری د دواړو مملکتو نه د هغه په تهیه کی ډېر زیار باسی او خپل وس نه سپموی د محاربی په دروله ریو میاشتو کی د المان قوا و سره ددې چه سرو لښکرو شدید او جدی مقاومت کاوه د شرق په ټوله جبهه کی پرمخ رهی او په پیشرفت کی وه . د روسیه غربی ولایات لکه د بالتیك ممالك ، کریلیا ، سپین روسیه او په آخر کی د کریمیا او یو کراین لویه برخه ئې ونیوله ، لنینګراد ئې احاطه او مسکو ئې نیم محاصره کړ او په جنوب کی د المان عسکر وروستوف ته چه د نفت د راتلونکی قفقاز سرد ی ورسېدل ـ اما سره د ژمی شروع کېدو او د سره قشون د نوې تکړه توب په اثر چه قیادت ئې په خپله ستالین پر اوږه واخیست د جنګ وضعیت تغیر وموند ـ روسیانو جوابی حملو ته لاس ور ته کړ او المانیانو پر شاتګ شروع کی ـ چه په نتیجه کی مسکو له محاصرې خلاص او څه قسمت له یوکراین او کریمیا څخه مسترد شو او تر اوسه هم په ټوله جبهه کی د روسیانو حملې دوام لری ـ بالمقابل د المانی ـ

عسکرو د پرشاتګ په وخت کی هیڅ بې نظمی پیښه نه شو ـ او د روسیې سخت ژ می ئې په هر ډول چه و ، وبای ته ورساوه ، اوس چه پسرلی شو المانیان د خپلو لو یو ا و فیصله

کوونکو حملو خبری اتری کوی ، حتی هټلر هم په خپلو وینا و کی ویلی دی - او تر اوسه د نیا ددې حملو و شروع کېدو ته منتظر ه ده . د المان او شوروی تصادم چه د جګړې مخ ئې عملا د شرق ولورته راوګرځاوه نور عکس العملونه ئې هم پیښ کړه ، چه یو له هغو څخه دایران دنیولو قضیه ده - انګلیسانو اوروسیانو د شرقی محاذ د جګړې له ابتداء د څو المانیا نو وجود د ایران په خاوره کی خطر ناك باله او ددوی ایستل به ئې دایران له حکومته غوښته . بالمقابل د ایران دولت د اړ ورکاوه چه د محور د اتباعو شمېر ډېر نه دی او څه چه دی هغه هم تر دقیق کنټرول لاندی دی - مګر دې ډاډ د متحدینو قناعت حاصل نه کړ - څو په آخر کی مسئله تر مذاکراتو تېره شوه او (په اسد ) کی د انګلیس او شوروی عسکرو دایران پر خاوره تجاوز وکړ او ددواړو دولتو سفیرانو د خپلو یاد داشتو په ضمن کی خپل د دې مسلح اقدام مجبوریت څرګند کړ . ایرانی قواو په هر ځای کی دجزوی کودتاو مقابله شروع کړه ، څو په طهران کی د پورته مملکتو سفیرانو دازیار یوست چه دایران له حکومته سره ویوې موافقې ته ور سېږی اوددې په اثر چه څنګه دمحمد علی فروغی تر ریاست لاندی کابینه تشکیل او په مذاکراتو مامور ه شوه .

د جګړې په دری یمه ورځ ئې د دو لتینو سره خبر اتری شروع کړې او دجګړې د پرېښو ولو اعلان ئې وکړ او ایرانی قواو له مقابلی څخه لاس واخیست . د متحدینو عسکرو دایران دغرب او شمال ځمکی د طهران ترشاوخوا پوری ونیولې او دلمړنیو خبرو اترو په نتیجه کی داسی موافقه حاصله شوه چه د محور تبعه دی و انګلیسی او شوروی قواوته وسپارل شی ددوی او ددوی د متحده ممالکو سیاسی نمایند ګان دی وئیستل شی او تر هغو پوری چه د وضعیت تقاضا وی د متحدینو عسکر به د ایران په ځینو مختلفو برخو کی اوسی او د ایران دمواصلاتو څخه استفاده کوی دې پېښې دایران پر داخلی وضعیت هم یوه ناوړه اغېزه وکړه چه د سیاسی بحران په اثر اعلیحضرت رضا شاه د (سنبلې په ۲۵) تاریخ له سلطنته لاس واخیست له مملکته اووت - او اعلیحضرت محمد رضا پهلوی دده ولیعهد پر تخت کښېناست او داداری په طرز کی لوی لوی تغیرات پیښ شوه وروسته تر دې د انګلستان او شوروی او ایران تر منځ دیو والی د قرارداد اساس کښېښو ول شو - د (دلوی په ۱۰) تاریخ د ایران پارلمان دا تصویب کړه چه د دې قرارداد په موجب ایران د پورتنیو دولتو سره متحد او د دې خاوری د فاع به دولتین پر خپله اوږه اخلی - او تر عمومی صلح ٦ میاشتی وروسته به د دو لتینو عسکر دایران خاوره تخلیه کوی او د صلح په کنفرانس کی وایران ته مساوی حق ور کول کیږی -

نو دایران تر نیولو وروسته دایران مواصلاتی لاری دمتحدینو د ګټی دپاره استعمال شوې او داصلاح اوارتوالی دپاره ئې ترتیبات ونیول شوه - چه وروسیه ته دامریکا او برطانیه دمرستی لویه برخه له هم دغو لارو څخه استول کیږی -

تر دې وروسته په ایران کی یو سیاسی بحران پیښ شو چه علی فروغی استعفاو کړه او دچارووا ګی علی سهیلی په لاس کی ونیولې -

۞ ۞ ۞

ددې کال یوه بله مهمه پېښه دانګلیسی او امریکا سره دجاپان جګړه ده چه ( دقوس په ۱۷)

# د دنيا ځيني مهم اشخاص

د عراق پخواني صدر اعظم
رشيد علي گيلاني

جنرال توژو دجاپان صدر اعظم

جنرال آ کن ليك ، په منځني شرق کې
د برطانيې دعسکرو قوماندان

جنرال مکار تر د فلپائن مدافع
اودمتحدينو دقوى اوسني قوماندان
د انزاك په رقبه کې

## د دنیا ځینې مهم اشخاص

فیلډ مارشال سانګرام ، د تایلنډ
صدر اعظم

نحاس پاشا دمصر رئیس الوزرا

سټیفرډ کرپس ، د برطانیې
دحربي کابینې نماینده دهند دحل
طلبي مسئلې دپاره چه هند ته راغلی و
او بې له نتیجې بیرته ولاړ

تاریخ شروع شوه ـ دموجوده جنگ له سره څخه بلکه تر هغه لا د مخه جاپان د محوری ددولتو به قطار کی ځای نیولی و ، دانگلیس اوامریکا سره ئې ورځ په ورځ مناسبات خرېدل ـ

په تېره بیا په تېر کال کی تر هغه وروسته چه انگلیس او فرانسه په غربی محاذ کی په جگړه اخته وه ، جاپان په فرانسوی هندچین کی بحری او هوائی مرکزونه اوهم دغه رنگه د برما او چین دلاری بندول ئې له انگلستان نه څخه وغوښته .

له هغه نه پس دجاپان د عسکرو تگ وفرانسوی هند چین ته او بیاد تا یلیند او هند چین په منځ کی د جاپان بگانې اود جاپان غوښتنی له هالیندی شرق الهند څخه او بالاخر په چین کی د جاپان آقداما تو همیشه د دو لتینو د ناراضی راغونه وله .

خو بیای ئې دا شو چه وروسته تر هغه چه المان پر شوروی حمله شروع کړه ، انگلیس او امریکا د جاپان و اقتصادی محاصرې ته هڅه وکړه ـ ځو وضعیت یو بحرانی شکل پیدا کړ جاپان د محاصرې له سیاسته ډېر شاکی و ، او د اعصابو تریوه سلسله جنگو وروسته ټو کیو ( د عقرب په۱۷) یو فوق العاده نماینده ( کوروسو ) و واشنگټن ته د مذاکرې د پاره واستاوه- او کوروسو د عقرب په ۲۶ و واشنگټن ته ورسېد، هلته په مذاکره بخت شو ـ دامریکا حکومت د برطانیه د حکومت په مشوره خپل قطعی شرطونه دجاپان ونماینده ته وړاندی کړه او په هغه . کی ئې دخپلی ممکنه موافقې اساس داسی څرگند کړی و ، چه جاپان دی د محور له اتحاده ووزی اودچین له جدیدالتشکیل حکومته دی صرف نظر وکړی اوهندچین دی پرېږدی .

که څه هم مذاکرات څوواره وشلېده اوبیا بیرته سره پیوند شوه او د ټولو دا گمان و چه په پای کی به یوه مشترکه زمینه میدان ته راووزی ـ مگر ناڅاپه ( د قوس د۱۷) په شپه خبری اتری پرې کړه شوې او جاپانی قواو په شرق اقصی کی د انگلیس او امریکا پر متصرفاتو سخت یرغل وکړ په لمړی حمله کی ئې دهاوائی او سنگاپور او هانکانگ حربی مرکزونه ترمردك اورولو لاندی ونیوله او سخته گله باری ئې پرو کړه او پر دې سربېره ئې د ملایا او فیلیپائن په خاوره او دویك او مدوی پر جزیرو عسکر پیاده کړه، او په شنگهای او د چین په نورو بین المللی ښارو کی ئې د انگلیس او امریکا امتیازی منطقې اشغال کړې د جاپان عملیات داسی شدید او ژرا و غیر منتظر وه چه په لمړیو حملو کی ئې د متحدینو وهوائی او بحری مرکزونه خورا سختی صدمې ورسولې او جاپانیانو چه هر ځای غو ښته په موفقا نه ډول ئې عسکر پیاده کړه ـ او په پنځلس ورځو ئې هانکانك په یوه میاشت ئې منیلا د فلپائن مرکز او د هغه شاوخوا ډېری جزیرې او په دوې میاشتی ئې ملایا او سنگاپور او په درې میاشتی ئې د برما مرکز رنگون او په درې نیمی میاشتی ئې ټوله هالیندی شرق الهند سره ددې چه متحدینو سخت کوښښ کاوه ونیول ـ اوس په فیلیپائن کی د بتان شبهه جزیره او د بحر الکاهل په جنوبی رقبه کی استرلیا او نیوزیلیند او دهاوائی جزیرې د متحدینو په لاس کی پاته شوې او د جاپان عسکرو د برما په خاوره کی د شمال او غرب وخواته فشار راووړ او پر استرلیا باندی دحملې انتظار ورځ په ورځ نژدې معلومېږی ـ وروسته تر هغه چه جاپان د انگلیس او امریکا پر مقابل د جنگ اعلان وکړ ددې دواړو مملکتو اتحادی

# غلطنامه

| صفحه | سطر | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۱۰۵ | ۲ | ترجمهٔ بناغلی پژواک | اثر بناغلی پژواک |
| ۱۲۷ | ۵ | شاه | پادشاه |
| » | » | بالکه | بلکه |
| ۱۲۸ | ۲۲ | پیشداوی | پیشدادی |
| ۱۶۵ | ۱٤ | میگوید | میگویند |
| ۱۶۶ | ۱۸ | ظهر الدین | ظهیر الدین |
| ۱۷۰ | پاورقی | مصرر | مصور |
| ۱۷۷ | ۱٤ | سنائی یك | سنائی یکی |
| ۱۷۸ | ۱ | غربی نهز | غربی شهر |
| ۱۸٤ | ۱۹ | زه ،زما | زه ، ما |
| » | ۲٤ | برای نستیه | تثنیه |
| ۱۸۵ | ۱۵ | غوند بیخی | غوند بوخن |
| ۲۱۷ | ۱۱ | درخود | درخور |
| ۲۱۸ | ۵ | قزیه | قریه |
| ۲۲۶ | ۱۲ | ازقرن | درقرن |
| ۲۳٤ | ۹ | کهسال | کهسان |
| » | ۲۱ | گوری ویل | گوری دیل |
| ۲۳۵ | ۱۶ | درزبان | درزمان |
| ۲۳۶ | ۱۱ | غلیك | نهلیك |
| ۲۵۱ | ۸ | ار | وار |
| ۲۵۶ | ۲۹ | تهرنگ | پهرنگ |
| ۲۶۵ | ۲۹ | میدان نه | میدان ته |
| ۲۷۵ | ۳۲ | زیاتیزی | زیانیزی |
| ۲۷۹ | ۲ | راسالیب | اسالیب |

| صفحه | سطر | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| صفحه ۲ د دنیا واقعات | ۱۲ | مفاد اوزدبنو | اوزدشو |
| » | ۱۹ | باعث وکر تحید | باعث و گر تحید |
| » | ۳۰ | مدیرانی | مدیترانی |
| ۲۹۷ | ۵ | تراجید دابیا | تراجیدا بیا |
| » | ۹ | علل ددوی | علل د وی |
| » | ۲۷ | اماسره دژمی شروع کیدو | امادژمی شروع کیدو سره |
| ۲۹۸ | ۳۲ | دانگلیسی | دانگلیس |
| ۲۹۹ | ۸ | ددولتینو دناراضی | ددولتینو ناراضی |

# فهرست مندرجات سالنامه

## ۱۳۲۰

### الف : مضامین


| مضمون | صفحه | مضمون | صفحه |
|---|---|---|---|
| د کابل لسمه کالنی | ۱ | تشکیلات وزارت معادن | ۱۹ |
| دافغانستان باد شاه | ۲ | « ریاست زراعت | ۲۰ |
| تشکیلات مملکتی ( صدارت عظمی ) | ۳ | « « مطبوعات | » |
| « وزارت حربیه | ۵ | | |
| « « خارجه | ۹ | **ولایات وحکومات اعلی :** | |
| « « داخله | ۱۱ | تشکیلات ولایت کابل | ۲۲ |
| « « عدلیه | ۱۲ | « « قندهار | » |
| « « مالیه | » | « « هرات | ۲۳ |
| « « معارف | ۱۳ | « « مزار شریف | ۲٤ |
| « « اقتصاد | ۱۵ | « « قطغن وبدخشان | ۲۵ |
| « « فوائد عامه | ۱۶ | « « مشرقی | ۲۶ |
| « « صحیه | ۱۷ | « « جنوبی | ۲۷ |
| « « پست و تلگراف | ۱۸ | « حکومت اعلی میمنه | » |

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| تشکیلات حکومت اعلی فراه | ۲۸ |
| « دوائر ملی ( شورای ملی ) | ۲۹ |
| « مجلس اعیان | ۳٤ |
| « دوائر حضور ( وزارت دربار ) | ۳٦ |
| « دارالتحریر شاهی | ۳۷ |

## اجرا آت دوائر مملکتی :

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| امور حربیه | ۳۸ |
| « خارجه | ٤۰ |
| « داخله | ٤۳ |
| « عدلیه | ۵۷ |
| « معارف | » |
| « اقتصاد | ۸۰ |
| « صحیه | ۸۱ |
| « مالیه | ۹۳ |
| « پست و تلگراف | ۹٤ |
| « ریاست مستقل زراعت | ۹۹ |
| « « مطبوعات | ۱۰۳ |

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| امور شورای ملی | ۱۱۵ |
| « اعیان | » |
| د افغانستا بانك | » |
| بانك ملی | ۱۲۰ / ۲ |

## مقالات :

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| ممدوحین شاهنامها | ۱۲۱ |
| گلهای کوهی | ۱۳۳ |
| کارخانهای افغانستان | ۱٤٤ |
| آبدات ومزارات غزنی | ۱٦۲ |
| نکتهٔ چند درگرامر ولغت پښتو | ۱۸۲ |
| مزایای بدیعی پښتو | ۱۸۸ |
| دریمه برخه میاروښان | ۲۰۳ |
| فهرست شهرهای افغانستان | ۲۱۷ |
| پښتون | ۲۳۸ |
| د پښتو نثر | ۲۵۱ |
| داخلی مهم وقائع | ۲۸۰ |
| ددنیا واقعات | ۲۹٦ |

## ب : تصاویر

| تصویر | صفحه |
|---|---|
| اعلیحضرت اشرف همایونی | مقابل ۲ |
| ج ، ع ، ج والاحضرت صدراعظم صاحب | ٤ |
| ع ، ج ، ا ، انیان والاحضرت وزیر صاحب حربیه | مقابل ٦ |
| ع ، ج والاحضرت سردارشاه ولیخان | مقابل ۱۰ |
| ع،ج والاحضرت وزیرصاحب معارف | « ۱۲ |
| ع،ش « سردار محمد داؤد خان | « ۳۸ |

| تصویر | صفحه |
|---|---|
| ازمقرریهای مهمه وزارت حربیه(٤) قطعه | مقابل ٤٤ |
| « « داخله « « « « | » |
| « « متفرقه « « « « | » |
| پښتانه فازغ التحصیلان ۳ | « « « |
| پیلوتی شاگردان دعلمی درس پهوخت کی | « ۵۲ |
| میخانیکی شاگردان درو میو نا می الو تکی دکار په وخت کښ | مقابل ۵۲ |

| تصویر | صفحه |
|---|---|
| میخانیکي شاگردان دهیند وادرومیو نامی الوتکی ومخ ته | مقابل ۵۲ |
| والاحضرت وزیرصاحب حربیه دهوائی مکتب شاگردان گوری | مقابل ۵۲ |
| دروغتیا او بیطارۍ دکورس دلمړی دوری شهادتنامي وروېشلی کیږی | مقابل ۵۲ |
| دکورس عالی دمداو مینو ددو همی دوری ټولګی فارغ التحصیلان | مقابل ۶۰ |
| دپلوضابطانو دتعلیمگاه دلمړی دوری یوه ټولګۍ فارغ التحصیلان دخپلو معلمینو سره | مقابل ۶۰ |
| دقندهار عسکری قوماندانی او نورځایونه ٤ قطعه | مقابل ۶۰ |

| تصویر | صفحه |
|---|---|
| دراډیو موسیقی دکورس یوه ټولګی متعلمین ۲ قطعی | مقابل ۱۰۶ |
| هغه ذوات چه دکابل کالنۍ سره ئې قلمی مرسته کړیده (۱۲) قطعه | مقابل ۱۳۲ و ۲۰۲ |
| دچنداول معاینه خانه | « ۲۱۶ |
| سوی پل ( پل سوخته ) | « ۲۱۷ |
| دملی لوئې جرګې منظره (۲) قطعی | مقابل ۲۸۰ |
| والاحضرت شهزاده محمد نادر جان | « ۲۹۰ |
| د۲۳ کال دخپلواکۍ جشن (۶) قطعی | « ۲۹۲ |
| ددنیا ځینی مهم اشخاص (۲۲) « | « ۲۹۶ |
| رنګه عکسونه (۲) قطعی | |

روابط تر پخوابنه ټینګ شوه او سم دستي چرچل دروزولت د ملاقات د پاره واشنګټن ته ولاړ د دواړو خواو ارکان حرب یوه د همکارۍ نظامي نقشه طرح کړه او هم ضمناً چرچل و کانا ډاته مسافرت وکړ او د امریکا په پارلمان کي ئې د مملکتینو دیو والي په شاوخوا کي وینا وکړه - په هم دغه وخت کي ایډن د انګلیس د خارجه چارو وزیر په مسکو کي وه او دشوروی او انګلیس د همکارۍ او اتحاد تړون دجنګ په وخت کي او تر جنګ وروسته طرح کېده - هغه وخت چه جنګ د هند وسرحداتو ته نژدې شو د هند او چین په روابطو کي ډېر نژدې والي پیدا شو او چیانګ کای شیك وډهلي ته مسافرت وکړ دانګلیسي مامورینو اودهند دسرغنه وسره ئې وکتل اودهندځیني ځایونه ئې معائنه کړه او دواړوخو اودچین او هند دمقصد دیووالي اودسرنوشت دارتباط مظاهرات سره وکړه .

هم دغه ډول دبرطانیه حکومت وهندته دجنګ نژدې کېدو په نسبت سرستیفرد کرپس دحربي کابینې عضو دنوی پروژې سره دهند دقضیې دحل کولودپاره وهندته واستاوه - چه مستقیماً دهند له سرغنه وسره خبرې اترې وکړی اوویوې اطمینان بخښونکي نتیجې ته ورسیږي اوهم په هند کي دفاعي ترتیبات په لویه پیمانه شروع شوی دی - له بلي خوا ( دقوس په ۲۰ ) تاریخ المان اوایطالیاهم دامریکاومتحده ممالکوته دجنګ اعلان ورکړ اوتایلیند هم دجاپان پرخواشو او بالمقابل دامریکائي دولتو کنفرانس ( دجدی په ۲۵ ) تاریخ په رایودی جنېرو کي منعقد شو اوله محوره سره ئې دامریکائي دولتودروابطو پرېکول تصویب کړل . اوامریکائي ډېرودولتو دجاپان اوالمان اوایټالیاپه مقابل دجنګ اعلان وکړ اوخپله همکاری ئې د اتا زو نی د متحده ممالکو سره څرګند کړه - خو یوازي دجاپان اوشوروی روابطو څه فرق نه دی پیدا کړی تر اوسه ددواړوخواو اتحاد دبیطرفۍ دهغه لس کلنی تړون له رویه چه دتېر کال په پای کي هغه وخت چه متسو کا دجاپان دخارجه چاروزیر په مسکو کي لاس لیك کړی و ، دوام لری.

❀ ❀ ❀

یو بل دبیطرفه مملکتو څخه دتر کیې مملکت دی چه که څه هم ورځ په ورځ دجنګ لمبې یې وسرحداتو ته نژدې کیږی خو تر اوسه ئې خپله بې طرفي ښه ساتلې اوله دواړوخواوسره دوستانه روابط لری .

او په عین زمان کي خپل عسکری او اقتصادی شئون تقویه کوی . اومصر هم دبرطانیې سره خپله پابندی په خپل اتحادی تړون څرګنده کړې ده امادکال په پای کي هلته هم یولنډ سیاسي بحران دبورته معاهدې دمقرراتو پرتعبیر او تشکیلاتي مسائلو باندی پیښ شو چه دهغه په اثر دوفدحزب دمملکت چارو به لاس واخست اونحاس پاشا کابینه تشکیل اوخپله پابندی ئې داتحاد په تړون له کابینې سره اعلان کړه . امادمصر په داخلي چارو کي ئې دبرطانیې نه داخلیده وغوښته اونوی انتخابات ئې اعلام کړه هم دغه رنګه په اروپا کي دویشي دولت تر هغه وروسته چه سوریه ئې له لاسه ووتله اوهندچین نظامي حفاظت ئې وجاپان ته وسپاره دخپلونورومستعمراتو دساتلو دپاره ډېر زیار باسي اوخپله دبې طرفۍ وضع ساتي اوددواړوخواوته ئې دخپلو مستعمراتو اوبحریې اونوری داراٸې پر ینبودل منع کړی دی - هم داډول اسپانیه او پرتګال سره ددې چه ددوی پرمنافعوډېر فشار و نه له هری خوا واقع شوی دی تر اوسه پوری بیطرفه پاته دی . ( پای )